# څرک

۱۰۰ گڼه

## څرک د خپلو ۱۰۰ ګڼو په پلوشو کې!!

څوارلسم کال، پنځمه، پرلپسې ۱۰۰مه ګڼه،
رطان۱۳۹۶ل شوال المکرم۱۴۳۸هق، جولای۲۰۱۷م



## د افغان بې دفاع ولس په قتل عام
## بشریت مدعیان ولې خاموشه دي؟

- بې طالبه افغانستان نیمګړی دی
- بسته او تولپوښتنه...!!
- دقطر ستونزه کې استعماري څواکونه څه غواړي؟
- جوانان بیدار وعاقبت استعمار در افغانستان

## د جګړې غځول ...
افغانستان لپاره د ټرمپ نوې ستراتیژي

## نیروی بیشتر
جنگ بیشتر و خون ریزی بیشتر!

## د اقصی کلابندي
او داسلامي هیوادو دچارواکو مجرمانه چوپتیا






څوارلسم کال، پنځمه، پرلپسې ۱۰۰مه ګڼه، سرطان۱۳۹٦ل،
شوال المکرم۱٤۳۸هق، جولای۲۰۱۷م

**امتیاز :**

دا متیازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

مسؤل مدیر : عبید تنویر

لیکوال پلاوی : ډاکټر صابر ، حمید ، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

**ګډون :**

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۱۱۸۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۲٤۰ کلدارې |
| امریکا : | ٦۰ ډالره |
| اروپا : | ٦۰ یورو |
| یوه ګڼه : | ۱۵ افغانۍ<br>۲۵ کلدارې |

**یادونه**

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې دادارې دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.

تخنیکي چارې: تخنیکي څانګه

**پتې :**



srak_111@yahoo.com



علمي، فرهنګي، ټولنیزه اسلامي خپرونه


# لړلیک

سرمقاله

بسم الله الرحمن الرحیم






# د خپلو ۱۰۰ ګڼو په پلوشو کې!!

۱۴ کاله وړاندې یعنې د (۱۳۸۲) لمریز کال د مرغومي په ړومبی نیټه ځرک مجله په داسې شیبو او شرایطو کې چاپ او شغلوره شوه چې په هیواد د امریکا، ناټو او ۴۱ هیوادونو مستقیم یرغل په وحشت او شدت روان وو.

یرغلګرو په دې سربیره چې زمونږ مسلمانان او مجاهد ولس یې تر هر ډول اختناق او بربریت لاندې نیولی او ساتلی و، ورسره یې نړیوالې، سیمه یزې او په داخل کې چلیدونکې رسنۍ او مطبوعاتي بنسټونه دډالرو او یا هم دنورو امتیازاتو په بدل کې استخدام کړې وې چې یو حرف او یو لفظ به هم د اشغال په خلاف نه وایی، بلکې څه چې امریکا او یا یې امریکایي نوکران ورته وایي هغه به خپروي او هغوته به حقائیق او واقعیتونه وایي.

همدغه وجه وه چې د میډیا، رسنیو، سیاست او انساني حقوقو د مدعیانو له خولو صرف هغه څه را وتل او نشریدل به کوم به چې د امریکایي اشغال او منافعو ایجاب او غوښتنه وه.

که به امریکایانو د (بې باون) الوتکو په زریعه په یوه لحظه کې لوی لوی کلي او بانډې په بل مخ نسکورې کړې او یا به یې د (فاسفورس) د زهرجنو بمونو په توسط مظلوم افغانان او هم یې شتمنیانې لولپه او خاورې ایرې کړې اجیرو رسنیو او پلورل شوو سیاستوالو به ددې پرځای چې ددغو ولسي فاجعو او غمیزو په حالت اندیښنه وښي او یا صرف حقائیق ووایي له بده مرغه به یې امریکایي وحشتونو ته مثبت تاویلات او توجیهات برابرول.

نو ځرک په داسې نامساعدو او ضیقو شرایطو کې د ګوته په شمیر ولړباد رکه قلمو الو په مټو منځته راغله او د افغانستان د اسلامي امارت په مشرۍ د ننګیالي ولس د جهاد او میړانې د حماسو ثبتولو او ځلولو ته سینه سپرا وهوډیې وکړ چې ځرک به دیوې مخکښې جهادي سرچینې او د حقایقو د انعکاس دیوه پاخه سنګر په توګه جلوه داره ساتي او د خپل برمیال ولس تر څنګ به دریږي .

ځرک چې په خورا اخلاص او پاک نیت شروع شوې وه الله تعالی یې په کمزورو هڅو ، لیکنو او نشراتي لړ او سلسله کې له اټکل او تصور پورته برکتونه او فیوضات ولورول ، په هیواد اوله هیواده بهریې زرګونه مینه وال او لوستوال پیدا کړل او مهمه خبره دا چې په خپلې طلوع یې لسګونه نوري رسنی راوټوکولي او دا الهام یې ورکړ چې د حق او معرفت رڼا هیڅوک نشي تتولی.

له نیکه مرغه د جهاد او هجرت د غه ممثله ژبه د اسلام او جهاد د غلیمانو او حاسدینو د هرډول د امونو او دسیسو باوجود دادی یوه نیمه لسیزه د خپل ولس په خدمت کې وچلیده او هره میاشت یې د هغوئ دیني ، جهادي ، سیاسي او ادبي تندي خړوبې او سیرابه کړلي ، د مجاهدینو جهادي او سیاسي بریا وو ازانګې او دیرغلګرو د شکست او نابودی جریانونه او داستانونه یې په مستند ه توګه د هغوئ مخ ته کیښوول.

د ځرک ښاغلو او منلو لوستوالو :

تاسې به خبر او په جریان کې یی چې ځرک د تیرو ۱۴ کلونو په اوږدو کې په حساب ۱۰۰ ګڼې خپره او ستاسې مخ ته رسول شوي ؛ هود رنو لوستوالو او مینه والو پوره سل ګڼې !!

او په دومره پیچلو او ځپځپاندو شرایطو کې دیوې خپرونې سلوګڼو ته رسیدل او بیا چې له خپل مسیر او عهد څخه یوه لویشت هم پرشا ولاړه نشي له شک پرته چې د ازیات د شکر او لله تعالی ته د حمد و نو ویلو او سجدو ایښودلو ځای دی !!!

د ځرک چلونکي په دې خبره اعتراف کوي چې د مجلې په تیر نشراتي بهیر کې به ارو مرو تخنیکي او علمي نیمګړتیاوي مخي ته راغلي وي که څه هم وخت په وخت ځینو لوراندو او بادرکه ورونو کمیو ته ځرکوالو متوجه کړې، خو په راتلونکي کې زیاته تلوسه او ارزوده چې قدرمن لوستوال ځرک خپله مجله او د زړه ټوټه وبولي او د خپلې هراړخیزې مهربانی له مخې یې په اصلاح او نوري کامیابي کې مثبت رول ادا کړي ، خپلې اصلاحي لیکنې او کره کتنې ورته په خلاص مټ راولیږی او د ځرک برم او عظمت څوچنده کړی .

په مننو او دعاګانو !



# د افغان بې دفاع ولس په قتل عام

# دبشریت مدعیان ولې خاموشه دي ؟

خیراحمدم

امریکایانواوحلقه بگوش رژیم یې ددې لپاره چې د اسلامي امارت اوعام ولس ترمنځ کرکواونفرتونه ته ځای پیداکړي نو دتیرو ۱۷ کلونو په اوږدو کې یې مسلسل داتبلیغات کول چې طالبان دمعارف اوزدکړو ضد اومخالف دي، مکتبونه سوځوي، معلمان اواستادان وژني.

په داسی حال کې چې اسلامي امارت هیڅکله دتعلیم مخالفت نده کړی بلکې ترخپل لاس لاندي سیموکې یې دعصري اودیني علومومراکزوته عملي لاری چاري اواسانتیاوي مساعدي کړي ؛هودتعلیم په شکل ، نصاب اوموثریت کې به یې ارومرو ملاحظات لرلي وي خوداچې مکاتب دې ونړوي اولسکونو شاګردانواواستادانو ته دی زیانونه واړوي داکار صرف اوصرف دهغوقوتونودي چې په ظاهره خودتعلیم دودي اوعامیدوخبري کوي ، خوپه اصل کې له علم اوفهم سره ړومبی درجه ضدیت اوکرکه دهمدوئ په سینواوذهنوکې وجودلري.

وړمه ورځ دکندوز دپامیرهوټل او اورتبلاقیو اودوبلو په سیمو کې امریکایانودنجونوبرحاله مکتب په خروارونو بمونووالوزاوه په هغه سربیره ه یې دناترسه بمباری له امله لسګونوولسي خلکوته ځاني اومالي زیانونه ورواړول.

ایاتردې به له معارف ، مکتب اوښوونیزومراکزوسره بله زیاته اوڅرګنده دښمني کومه یوه وي چې دوئ ترسره کړه اوپه خپل عمل نادم اوپښیمانه هم ندي .

په عین حال دراپورونوترمخه وړمه شپه دګوډاګي رژیم دامنیتي قواووااوابکیانو له لوري دترینکوټ ښار اړوند د سجاول په سیمه کې دشپني عملیاتوپه نوم بل ستروحشت په کارواچول شو، داکرغیړن به چې کومو کورونوته دننه کیدل په چوراوچپاول سربیره به یې عام خلک په دې نوم چې تاسې له طالبانوسره خواخوږي لری اوډوډۍ ورکوی وهل او ځوانان یې له ځانوسره بیول له همدې ویرې یوشمیرکورنیوله خپلوکورونوڅخه نیږدي باغونواوځنګلونوته پناه وړي وه ،ولې وحشي اربکیانو اوداردو عسکروپه ځنګلونواوباغونوکې ایسارخلک چې زیاتره پکې ښځي، ماشومان اوسپین ژیري وو هم معاف نکړل دځنګله اوباغونوپه لوریې مسلسلي اوناتاري ډزي وکړي چې په نتیجه کې ۲۰ تنومظلوموافغانانوته مرګ ژوبله واړوله



اوسیمه ییز بشري بنسټونه په دې اړه هیڅ نوعه عکس العمل اوغبرګون نه ښيي څه چې امریکایان اویایې مزدوران ورته وایي هغه مني اوپه ډیرتاسف چې دکال په پای کې یوناما کومه ارقام په ډاګه کوي هلته هم لوی زیاتی کوي ملکي وژل شوي خلک په وسلوالوتیروي .

دکندوز دمکتب په څیرپیښه که چیري دمجاهدینوله لوري ترسره شوي وای نو اوس به دمیډیا، اودبشري سازمانونو خولي ترستوني پوري څیري شوي وای چې وګوری طالبان له تعلیم اوزده کړوسره دومره ضدیت اومخالفت لري چې دنجونومکتب یې په بل مخ ونړاوه اوپه هیڅ بیه بائیدمعاف اوونه ښل شي !!

خوچې دبشریت کاذب مدعیان امریکایان داکار کوي اوپه یوه ورځ لسګونه افغانان له تیغه تیروي میډیا، بشرپالان اوحقوقوال ټول پري چوپه خوله اوصم بکم دي.

د واټسن موسسې لخوا په یوه ترسره شوې نظرسنجی کې راغلي چې د بهرنیو ځواکونو په هوایي بریدونو کې په تیرو پنځلسو کالو کې د سل زره څخه زیات ملکي افغانان وژل شوي، چې امریکا او افغان حکومت په خپل وخت کې هر برید په مخالفینو بللی او په کې وژل شوي کسان یې طالبان ګڼلي دي ؛ خوحقیقت هیڅکله داسې ندی .

زمونږ له نظره دامریکایانو اودهغوئ دمزدورانو په توسط دکندوز اوترینکوټ وروستی ولسي مرګ ژوبلي اوپه خاص ډول دمکتب هدف ګرځول دبشریت په وړاندې سترجرمونه اوصریحي خلاف ورزی دي.

په کار ده چې یوناما اونوربشري اداري چې ځانونه دانساني حقوقو ددفاع علمبرداران بولي، بائیدتذبذب اودوه مخی موقف ته دپای ټکی کیږدي دیرغلګرو امریکایانوپه جرمونو لدې زیاتي خاوري امبارنکړي حقائیقو ویلو اوحقائیقومنلوته غاړکیږدي .

دترینکوټ دملکي روغتون سرطبیب ډاکټرضیاء الرحمن رسنیوته ویلي چې نوموړي روغتون ته راول شوي ټپیان اکثریت ښځي اوماشومان ول !!

په افغانستان کې دامریکایانو اودهغو دګوډاګیانوپه لاس هره ورځ زمونږ مظلوم اوستمدیده هیوادوال په قصدي ډول شهیدانیږي، ټپونه وراوړي په کورونویې چاپې وروړي اودربړولو په خاطر یې له ځانوسره یې وحشي زندانونه بیایی.

خوپه مقابل کې دملکي وګړو دتلفاتو دمخنیوي اداري اونړیوال

# د ډیورنډ کرښې دواړو غاړو ته

# پوځي عملیات د څه لپاره ؟!

شاهد (غزنیوال)

د روان میلادي کال د جولای میاشتې په پیل کې اسلام آباد او کابل ته د امریکایي سناتور او په کانګریس کې د پوځي خدماتو د کمیټې مسؤل جان مکین او ورسره پلاوي تر راتګ وروسته پریکړه وشوه چې د وسله والو د تعقیب په غرض به د ډیورنډ کرښې دواړو غاړوته د امریکایي ځواکونو تر نظارت لاندې پوځي عملیات تر سره کیږي.

که څه هم چې امریکایانو تر دې وړاندې هم په یاده سیمه کې هوایي او ځمکني عمایات ترسه کړي چې له امله یې د کرښې دواړو غاړو ته په سلګونو ولسي خلګ شهیدان او کورونه یې ور وران شوي دي.

دا چې دقیقا اوس ولي هغوی په رسمي ډول په دې سیمه کې عملیات یې پیلوي او دا کار په راتلونکي کې د سیمې لپاره د واشنګټن د نوې ستراتیژۍ برخه ګرځوي خپل زماني او مکاني مدلولات لري چې په لاندې کرښو کې ورته اشاره کیږي.

لومړی : د افغانستان په داخل کې د امریکایي اشغالګرو په مقابل کې ولسي- مقاومت اوس داسې مرحلې ته رسیدلی چې خاموشه کول یې هم د امریکایي اشغالګرو او هم دهغوی د داخلي ملاتړو له توانه وتلی کار دی.

امریکایان او په نړیواله کچه تر ټولو مقتدر پوځي ترون ناټو له خپل ټول پوځي برلاسي سره پر دې ونه توانیدل چې د افغان ولس دغه دفاعي مقاومت له منځه یوسي .

د امریکایانو دغه ناتوانې هم خپل امریکایي ولس او هم نړیوالې ټولنې محسوس کړې حتی چې اوس د ملګرو ملتونو غوندې معتبره نړیواله مؤسسه هم پر دې ټکي اعتراف لري چې د مقاومت لوری (طالبان) پر نیمایي افغانستان کنترول لري ، چې دا د امریکایي دفاعي چارواکو لپاره د لویې ناکامي او سرټیټې لامل دی.

هغوی اوس د دې لپاره چې له خپلې ماتې او شرمندګي څخه د خپل ولس او نړیوالو پام واړوي کوښښ کوي دا مقاومت له افغانستانه بهر د یو غیر افغاني مقاومت په حیث نورو جهتونو منسوب کړي.

امریکایانو پوره ۱۷ کاله په افغانستان کې تیر کړل ، په دغه ټوله اوږده موده کې یې یوه ورځ هم له مقاومت او مزاحمت پرته نه ده تیره کړې ، که واقعا هم لکه دوئ چې اذعان کوي دا مقاومت د کرښې له هغې غاړې تجهیز او تمویلیږي نو دوئ به له پیله د همدې بهرني منبع په خلاف اقدام کړی وای.

دوهم : امریکایان غواړي د کرښې دواړو غاړوته د وسله والو د تعقُب په پلمه د سیمي پښتون ولس کوم چې په سرشت او خټه کې یې په طبیعي لحاظ د اسلام مینه اخږلې ده وټکوي.



امریکایان غواړي د کربښې دواړو غاړوته د نیږدي پنځوس کیلومیټره په واټن کې په پښتون میشته سیمه کې پوځي عملیات پیل کړي ، دا سیمه چې په تاریخي لحاظ یې له نسلونو نسلو نو راهیسې په اسلام قرباني ورکړې او په همدې جُرم د وخت د واکدارانو لخوا د ترقي او پرمختګ له هرډول آسانتیاوو څخه بې برخې شوې اوس امریکایان د نویو پوځي عملیاتو په وسیله غواړي هغه تر خپل مستقیم کنټرول لاندې راولي او په خپلو هوايي بریدونو او ځمکنیو عملیاتو سره هغه نور هم وځپي او په دې سره بیا خپل ولس ته و وایي چې په افغانستان کې زمونږ په خلاف مقاومت د داخلي افغانانو نه ؛ بلکې له ډیورنډ کربښې هغې غاړې نه تمویل او تجهیز کیدو چې اوس یې مونږ د ځپلو اراده کړې.

د ډیورنډ کربښې دواړو غاړو ته د امریکایي عملیاتو له پیل کیدو نه د هغوي همدا دوه هدفه دي چې غواړي په دې تخریبي پلمې سره له چتراله تر بولانه پروت غیرتي پښتون ولس نورهم وځوروي او بیوزله ماشومان ، بوډاګان او تورسرې یې د ډرون بریدونو او شپنیو عملیاتو هدف وګرځوي.

دغه ظالمانه پوځي عملیات په حقیقت کې د غیرتي پښتنو په خلاف د امریکایي اشغال دوهم پړاو دي چې په سیمه کې د دوي د مزدورو او بې ننګه ملاتړو په ملتیا پیلیږي ، خو ان شاء الله چې د هغو پایله به هم داسې ناکامي او رسوایي وي لکه په ۲۰۰۱ کال کې پر افغانستان وحشیانه یرغل.

د کربښې دواړو غاړو میشتو غیرتمنو پښتنو ته په کار ده چې دغه امریکایي سازشي پلان ته متوجه او په خپل ښکاره مخالفت او مقاومت سره هغه شنډ کړي.

امریکایان د نړۍ د ترټولو مکار او حیله ګر ولس په حیث غواړي د دغه ډول مصنوعي پلمو په وسیله لومړی په یوه سیمه کې نفوذ وکړي او بیا هلته په تدریج سره خپل د شرارت او شیطانت پلانونه عملي کړي.

د افغانستان اشغال د دوئ د شیطانت او شرارت یوه ژوندۍ بیلګه ده چې دلته په اصطلاح د تروریستانو د له منځه وړلو ، قانون حاکمولو او مخدراتو د محو کولو په نوم راغلل خو اوس د دوۍ په اعتراف چې په افغانستان کې تر ۲۰ زیاتې تروریستې ډلې چې دوئ یې له منځه وړلو څخه ناتوانه دي وجود لري ، او د دوئ په لاس جوړ شوې حکومت په فساد، لاقانونیت او نا امني کې په نړیواله کچه لومړی مقام لري او همدا راز افغانستان د دوئ تر اشغال وروسته د نړۍ په کچه د مخدره موادو په ستر تولیدوونکي مرکز بدل شوی.

د ډیورنډ کربښې دواړه غاړې چې تر اوسه پورې د منطقې د صعب العبوریت له وجې د امریکایي اشغالګرو د ځمکنې شتون له لوث (چټلې ) نه پاکې پاتې وې غیرتي ولسونه یې اوس باید په خپل ټول توان سره د هغوي د ورتګ او هلته د پوځي عملیاتو په کلکه مخنیوی وکړي.

ځکه امریکایان غواړي د دې عملیاتو په وسیله د انګریزانو هغه پلان چې سلګونه کلونه وړاندې یې د دې متحدې سیمې د ټوټه کولو په غرض طرحه کړی و بیا را ژوندی او دا ځل په دې پلمه د ټوټه شوی ولس د خپلو ړندو بمباریو هدف وګرځوي.

# دهامبورګ په ناسته کې

# امریکا وځنډل شوه

خلیل - عزیز

وړمه ورځ دالمان په دوهم لوی ښار ( هامبورګ ) کې دنړی د۲۰ مخ پروډې هیوادونو دمشرانو غونډه په داسې حال کې ترسره اوپایته ورسیده چې هیڅ کوم څرګندتوافق اوعملي پریکړه لیک یې نه درلود نوموړې ناسته له ۲۰۰۸ کال راهیسي- دنړۍ دهغو ۲۰ هیوادونوترمنځ جوړیږی چې دنړۍ ۸۵ فیصده اقتصاد دهغوئ په ولکه اوګرفت کې دی

موخه اوهدف یې د نړیوال اقتصاداوتجارت تنظیم اووده ده.

په وړاندې کلونوکې به دنوموړي ناستي مشري او دمهموپریکړو طرح اوډیزاین دامریکاپه لاس کې وو ، خوسږنی غونډه په داسې حال کې ترسره شوه چې دناستي زیاتره غړوهیوادونودامریکاپه خلاف دریځ درلود تردي چې دامریکادولسمشر- ( ټرامپ ) له خوا وړاندي شوي نظریات اوغوښتني دګډونوالو له عدم رضایت اوحساسیت سره مخ شوي

دامریکا دولسمشر ( ټرامپ ) خبري اوغوښتني ددې پرځای چې دنړیوال تجارت په پراختیااودعوائیدودتوزیع په عادلانه تضمین بناوي برعکس یې ټول ترکیز په امریکایي اقتصاداوامریکایي ګټووي چې همدغه دریځ دناستي د۱۹ غړوهیوادونو مسلسل غبرګونونه اوحساسیتونه راوپارول اوامریکایي له نړیوال اقتصاد سره په ټګی تورنه کړه.

دټرامپ دخبرو مهم ټکي په دې څرخیدل چې دډیروهیوادونوترمنځ مشترک توافقات اوګډې پریکړې نړیوال تجارت ته وده نشي ورکولی دده په اندامریکایي اقتصادته نړیوالوسازمانونولکه دناټو، اروپایي ټولنې اونوروبنسټونومشترکوپریکړو سخت زیان اړولی اودامریکاپراخي مالي سرچیني یې په اختیارکې اخیستې ، دټرامپ له خبرو دااندازه لګیدله چې نوموړی دهامبورګ ناستې ته هم په اهمیت اوتاثیرلرلو ندی قائیل.

دروسیي ولسمشر ( پوتین ) نوموړي ناستې ته دوینا پرمهال په امریکایي سیاستونوکلکي نیوکي وکړي په خاصه توګه ټرامپ یې مخاطب کړ چې تاسې په نړیوال تجارت کې دعدالت یادوني کوي ، خودامعلومه نده چې دغه شرایط په نړیوال مالي اواقتصادي قضاوت کې چیرته اوڅنګه عملي کیږي ، دپوتین اشاره په روسیي باندي داوکراین له امله لګیدلو اقتصادي بندیزونوته وه.

داځل دجی (۲۰ ) ناسته دغړوهیوادونوترمنځ ترډیره ځایه رقیبانه او دیوبل په مقابل کې دریدل وه ،په هغه سربیره زیاتره هیوادونو هڅه کوله چې دناستي په مهال

دخپل قدرت او تاثیرگذاری ښودنه وکړي اویوله بل څخه امتیاز ترلاسه کړي

دچین ولسمشر وړاندې تردې چې دهامبورګ غونډې ته ورشي مسکو ته یې سفروکړ چې هدف یې دنوموړي ناستې په مهال دامریکاپه مقابل کې ددواړو هیوادونوګډدریځ اوموقف ثابتول وو ، دغه راز دنوموړي ناستې څخه څو ورځې وړاندې اروپایی ټولني له چین اوجاپان سره دګډتجارت اومالي راکړې ورکړې په برخې عمده تړونونه لاسلیک کړل.

دغه راز دامریکاولسمشر (ټرامپ ) ددې پرځای چې هامبورګ ته ولاړشي ، لنډه ناسته یې په (پولند)کې وکړه هلته یې له نوموړي هیوادسره دامریکایي توغندیو دنصب اواستقرار تړون لاسلیک کړ ،له یادتړون څخه دټرامپ هدف په نظامي ډګر کې دامریکادنوي تحرک اوخودنمایي څرګندونه اودهامبورګ ګډوانوالوته پیغام رسول وو چې دامریکالاره اومسیرله هغوئ بیل اوجلا دی

په لنډه توګه بائیدووایوچې دجی (۲۰) ناستي دخپلې اجنداله مخې هیڅ کوم نړیوال توافق اوپریکړه لیک نه درلود ، بلکې ترډیره ځایه دنوموړي سازمان د۱۹ غړو له لوري په مستقیم اوغیرمستقیم ډول دامریکاپه مقابل کې محاذارایی اوهغه حیثیت اومقام ته ګوزاروکول وو چې په وړاندې کلونوکې به امریکا د ناستې په مهال درلود.

په دې معنی چې امریکابه څه غوښتل ۱۹ هیوادونوبه ورسره هیڅ ډول مزاحمت نه درلود نوځکه زیاتره کارپوهان وایي چې دهامبورګ غونډه داوار جی ( ۲۰ ) نه وه بلکې جی ( صفر) اویا «جی ۱+۱۹» وه یاپه بل عبارت دهامبورګ په ناسته ترټولو ګرمه موضوع دامریکا ټکول او ځنډل وو او دغه کار ترسره شو.

## د سلطان سلیم توره

د عثماني خلافت مشهوره څېره سلطان سلیم اول رحمه الله ته د یوه لوی کفري هیواد سفیر د لیدلو لپاره راغی، له ملاقات مخکې یې هغه ته وزیرانو وویل: تاسو باید تر ټولو ښایسته او ارزښتناکې جامې واغوندئ، سلطان ورته وویل: سمه ده، تاسو یې هم واغوندئ، وزیران یې د کفري هیواد له سفیر سره په ښایسته جامو کې سلطان ته ورننوتل، خو چې کتل یې سلطان په زړو او کمزورو جامو کې ناست و! او مخته یې په مېز خپله توره لغړه ایښې وه! چې کله سفیر ووت وزیرانو یې سلطان سلیم ته وویل: تاسو خو جامې نه دې بدلي کړې؟!

سلطان ورته وویل: ورشئ سفیر نه پوښتنه وکړئ چې سلطان څه ډول جامې اغوستې وې .سفیر چې د سلطان له جامو وپوښتل شو هغه وویل: ما چې د سلطان مخته لغړه توره ولیدله ومې نه شوی کولی پخپله سلطان ته وګورم، جامې خو لا پریږدئ! په دې سره سلطان وزیرانو ته وویل:

تر څو چې زموږ تورې لغړې او پرې کوونکې وي کفار زموږ جامو ته نه شي کتلی، الله دې هغه ورځ نه راولي چې تورې مو پټې او زنګنې وي او موږ په جامو بوخت یو، هغه مهال به مو کفار د ځمکې له مخه ورکوي. "د سعد الغامدي له وال نه"

# ملکیان څه وژل او په څه تاوانیدل؟

مسعود آرین

پنځلس کاله کیږي بې ګناه افغانان وژل کیږي، داسې ورځ به ډیره کمه راغلې وي چې ملکي خلکو ته دې زیان نه وي اوښتی دا نږدې تیرې دوه ورځې هم موږ او تاسو د ملکي خلکو او د بې ګناه افغانانو وژل دردولي او غمجن کړي یو.

د افغانانو د پوښتنې خو ځوک نشته چې له چا یې وکړي مشران خو یې ځکه نه کوي چې باداران یې بیا خفه کیږي او ډالر پرې بندیږي بس غټ کار یې دا وي چې په لاس پاک، لاس پاک کړي او وو ایې چې طالبانو دومره ملکي خلک ووژل په دې طریقې سره د ولس سترګو ته خاورې وروشیندې او هغه د سترګو په منښلو اخته او دوی بیرته خپلې عیاشۍ ته وخلاص شي مګر حقیقت هیڅ کله هم نه پټیږي آخر به هم یوه ورځ حقائق رابسیره کیږي او ناپوهان او بې درکه خلک به هوښیاران کیږي او د تأسف سر به وخوځوي تیره ورځ د برطانیې یو پوځي افسر د دې هیواد یوې ورځ پاڼې ته ویلي چې موږ به د طالبانو په نوم ملکي خلک وژل او خوند به مو ترې اخست برطانوي افسر ویلي چې د عامو خلکو له جسدو سره به مو وسله له دې کبله کیښوده چې ثابته کړو چې دا وسلوال طالبان وو افسر دا هم ویلي چې عام خلک به یې د طالبانو په نوم زندانو ته بیول او شکنجه کول یې

د برطانوي افسر په خبرو خوښ له دې وجې شوم چې د دوی هغه شعارونه چې ویل به یې موږ د ولس خدمت کوو او طالب ترهګر او ولس له منځه وړي پخپله د دوی په اعتراف مات شول او خپه بیا په دې شوم چې هغه افغانان چې دا شعارونه به یې بدرګه کول د افغاني ضمیر له مخې ځنګه نه شرمیدل چې د خپل غیرتي او میړني ولس عزت او آبرو یې لوټل.




ما چې کله د برطانوي افسر دا خبرې واوریدې څو دقیقې وروسته د طالبانو یو خبر راغی چې په روزګان ولایت کې د اروغ د کلي د نیولو خبر پکښې ورکړل شوی وو

په خبر کې راغلي وو چې له دې کلي شخه څو تنه تبنتیدلي اربکیان همدې کلي ته نږدې په یو بل کلي کې په یو کور کې محاصره شول خو طالبانو له دې امله څه نه ورته وویل چې هلته ملکي خلکو ته د زیان اوښتو خطر لیدل کیده.

اوس تاسو د برطانوي افسر او د طالبانو د دې عمل پرتله وکړئ او بیا قضاوت وکړئ !

جسور خان

# جوانان بیدار و عاقبت استعمار در افغانستان



افغانستان سرزمینی که در مقاطع زمانی مختلف تحت استعمار ابرقدرت ها قرار گرفته است، از بریتانیای کبیر تا اتحاد جماهیر شوروی و حالا هم امریکا؛ اما مردم مسلمان این سرزمین در مقابل هر یک ازین ابرقدرت ها با دستان خالی و به ارزش خون رزمیده اند. ایمان، شجاعت و هدف والای "اعلای کلمه الله" به حیث اسلحه ی بزرگ این مردم بود که آفتاب استبداد امپراتوری انگلیس را در همین سرزمین کوچک به غروب مواجه ساخت. به همین گونه اتحاد جماهیر شوروی را نیز با تمام هست و بودش مردان همین سرزمین به انزوا کشاند و اینک امریکا را نیز با همه سیاست های مکارانه اش در یک سردرگمی قرار داده است.

امریکا بعد از اشغال افغانستان در دهه نخست قرن ۲۱، از اسالیب مختلف، جهت تغییر اذهان عامه به خصوص نسل جوان، به نفع خود کار گرفت. یکی ازین اسالیب کاربرد اصطلاح "نسل دموکراسی" به نسل جوان بود، اصطلاحی که ظاهراً برا ی جوانان زیبا به نظر می رسید و از طرف تکنوکرات ها طوری توجیه می شد که گویا نسل دموکراسی به نسل آزاده و شجاع خطاب می شود. هدف از فضا ساختن این اصطلاح جلوگیری از شعارهایی بود که این نسل در اوایل اشغال امریکا در برابر آنان استفاده می نمودند، و هم چنان می خواست این تصویر را در اذهان مردم ایجاد کند که گویا امریکا دوست شماست و برای آموزش و پرورش و یا هم تأمین صلح و ثبات آمده است . اما باگذشت ۱۷ سال حضور امریکا درین کشور با نظام دست ساخته اش، چهره ی اصلی این متجاوز برای نسل بیدار این سرزمین نمایان شد. "نوام چامسکی" ادیب سرشناس امریکا و یک تن از منتقدین سیاست های امریکا طی یک سخنرانی که در انجمن دانشجویان آزاد امریکایی داشت، گفت: «حقیقت امر این است که کشتی امریکا در افغانستان دیگر به گل نشسته است و هر لحظه امکان از بین رفتن اش و جود دارد.» دیدگاه عمومی در افغانستان در مقایسه با دهه قبلی نسبت به امریکا ۱۸۰ درجه تغییر کرده و علیه امریکا شده است. نسل فعلی دیگر نسل دموکراسی نیست، بلکه نسل ضد امریکایی است. قاطبه مردم افغانستان بخصوص نسل جوان دیگر به این حقیقت پی برده اند که جنگ موجود در افغانستان ارتباط مستقیم به موجودیت امریکا درین کشور دارد و جنایاتی را که امریکا در افغانستان مرتکب شده است، از چشم هیچ کس پوشیده نیست.

پس هر نوع حضور نیروهای خارجی به شکل پایگاه دایمی، غیر دایمی و یا هم بدون پایگاه درین کشور اشغال بوده و برای یک نسل مجاهد قابل تحمل نیست. زود است این قدرت جهانی نیز مانند هم نوعانش توسط جوانان مبارز به شکست فکری، سیاسی و نظامی مواجه شود. تاریخ شکست نخورده و قدرت شکن ما باید الگویی برای مبارزه با اشغالگر مدرن و مکار امروز باشد.




# دسولې پر نوم تمسخر؟!

قاري خالد

تیره اونۍ دکریم خلیلي په مشرۍ دسولې دتشریفاتي او تمثیلي شورۍ نوې تګلاره تصویب شوه چې له مخې یې دطالبانو سره دسولې په اړه هیڅ طرحه او حتی پروګرام نه لري؛ پوښتنه داده چې دسولې شورۍ دڅه لپاره جوړه شوې، او ولې د بېچاره ولس له خزانې دومره درانه مصارف او دشورۍ غړو ته لوړ معاشات ورکول کېږي؟

په کار خو داده چې دسولې د شورۍ ټول تمرکز پر دې وي چې سوله ولې نه راځي، او کوم ـ کوم خنډونه دسولې مخ ته پراته دي؟ خو په ډېر تاسف سره باید ووایم چې دسولې له نوم څخه ناوړه استفاده روانه ده او محض دعامه ولسي اذهانو دتحریف لپاره وخت ناوخت ترې دسولې کلیشه یي شعارونه رسنیز کېږي.

دسولې پر نوم تمسخر ځکه روان دی چې په سوله ئیز افغانستان کې دکابل تر نیمایي زیات چارواکي خپل ژوند او کاروبار ته خطر محسوسوي، او پوهېږي چې دملت له غبرګون او محکمې سره مخ کېدل یې حتمي دي. ددوی ګټې او بقاء په جګړه ئیز افغانستان کې نغښتې، دوی پس پرده ده جګړې په تداوم ځکه ټینګار کوي چې دجګړې په لوګیو او لمبو کې ددوی کرغېړنې څېرې له ولس پټې او ورکې دي.

که سترګې پټې نه کړو او صاف حقیقت ووایو؛ دوستم د جمهوري ریاست دمرستیالۍ وړ دی؟

عطاء او شېرزی په دې ارزي چې دیوه داسې ولس نماینده ګي وکړي چې دڅلورو لسیزو جګړو وهلی او ځپلی؟ عبدالله او محقق دومره وړتیا او استعداد لري چې ددوو زبر ځواکونو، ناروا ځپېړو وهلي افغانان دیوه روښانه او سوکاله هیواد څښتنان کړي؟

او یا هم بېوسه، کمزوري، ناتوانه او مریض اشرف غني دومره حوصله او استقامت لري چې خپلسري ټوپکمار، قاتلین او دمافیا دباند غړي وزیران او قومندانان له پښو وغورځوي؟

دسولې مخ کې همدغه پلن ګېډي ستر خنډونه دي، دوی نه غواړي چې سوله او ارامي راشي، دوی نه غواړي دجګړې بلې لمبې مړې شي او ددوی کرغېړنې څېرې ولس ووینې.

دوی نه غواړي چې اشغالګر ځواکونه ووځي، افغانان خپله داسې اداره او نظام ولري چې کار اهل کار ته وسپارل شي، مسلکي کادرونه بلا واسطه او رشوت، پر وړ مناصبو وګومارل شي او ددوی واسطه یي اقارب او اوباشان له دندو وشړل شي.

همدا لامل دی چې په هیواد کې دجګړې اور دژبغړاند ساتلو لپاره د داعش ډله په سیمه کې مطرح کړی شوه او په لوړه کچه تبلیغات ورته وشول او لا ورته کېږي.



دملا رسول سنگوریان په هلمند کې رسنیز کړی شول او دتمویل او حمایې لپاره جبار قهرمان سیمې ته ولېږل شو، ننگرهار کې داعش ته کمپاین کېږي، مسلمیار یې تر شاه کلک ولاړ دی اکمال او تمویل یې کوي او په شمال کې چې دداعش شتون محال شو، دعطا او دوستم اوباشان چې له وراندې وسلې ورکول شوې وې، دداعش پر نوم رسنیو ته معرفي شول.

لنډه دا چې ترڅو اشغالگر موجود وي، او موجوده چارواکي حاکم وي دجگړې لمبې به همداسې بلې وي او دیو څو کرغېړنو څېرو دگټو او اشغالگرو دبقاء لپاره به د افغان ولس وینې په ډېره بې رحمۍ او بې دردۍ سره بهول کېږي.

دصلیبیانو دغوڅ شکست او ښېرازه افغانستان پر هیله

## د نوې امریکا تحقیقاتي مرکز غړی انند گوپال:

# واشنگټن په افغانستان کې د سوله ییز حل په مقابل کې تر ټولو ستر خنډ دی

**دا ۱۶ کاله چې امریکا څه وایي، دا ټول هسې غولول دي، که دوی وغواړي همدا سبا سوله راوستلای شي**

**دغه هېواد په افغانستان کې د بې ثباتۍ اصلي عامل دی او په خپلو مختلفو سیاستونو د جگړې پر اور تېل پاشي**

کابل – په واشنگټن کې د نوې امریکا څېړنیز مرکز غړي په دې باور دي چې د ټرمپ له خوا افغانستان ته د اضافي سرتېرو استول دلته پر بل شوي اور د تېلو د پاشلو په معنا دي.

د دغه مرکز غړی او د (امریکا، طالبان او جگړه د افغانانو له نظره) کتاب لیکوال انند گوپال وایي: "امریکا پخپله په افغانستان کې د بې ثباتۍ اصلي سرچینه ده. په کابل کې د یوه خدمتگار رژیم د درلودو په تړاو د واشنگټن سیاست هغه څه دي چې د امریکا د ملگرو ملېشو او جنگسالارانو پر ضد پر جگړه تېل پاشي. امریکا د سولې خبرو اترو او توافق په صورت کې وتلای شي، خو نن سبا په افغانستان کې د سوله ییز حل او توافق په مقابل کې تر ټولو ستر خنډ امریکا ده".

گوپال چې په افغانستان او عراق کې د خبریالۍ اوږده سابقه لري وایي ، متحده ایالاتو د یوې خوا دسولې نمایشي دعوې اوملاتړ کړی او له بلې خوادطالبانو د بې قید او شرطه تسلیمۍ غوښتنه کړې چې دا د سولې خبرې اترې نه دي.

انند گوپال همدارنگه ویلي: "دا ۱۶ کاله چې امریکا څه وایي، دا ټول هسې غولول دي. که دوی وغواړي همدا سبا سوله راوستلای شي. کله چې په ۲۰۱۴ کال کې انتخاباتي جنجالونه پیل شول، شمالي ټلوالې د کودتا گواښونه وکړل، خو د جان کېري په راتگ سره سړې اوبه توی شوې".

# آیا د امریکائي ځواکـونو په راتگ به

# ګډوډ رژیم قوي شي؟!

**لیکوال: محمد ولید**



کله چې د ۲۰۱۴ کال په پای کې ناټو سازمان افغانستان کې خپل پوځي ماموریت ختم کړ، د امریکائي ائتلاف غړو هیوادونو یو شمیر خپل پوځیان له افغانستان څخه وایستل او ځینې نورو بیا قدم په قدم د پخوانیو پوځیانو پر ځای تازه دمي پوځیان راولیږل، ترڅو چې افغانستان کې د طالبانو پـر وړانـدې وسلواله مبارزه وکړي، او ترڅنگ یې دکابل افغان امنیتي ځواکونـو تـه روزنـه ورکړي.

لکه څنگه چې د ناټو د پـوځي ماموریـت لـه ختمیـدو سره جوخت طالبان یو ځل بیا د تېـر پـه پرتلـه قـوي شـول او خپـل بریدونـه یـې نـور هـم گړنـدي کـړل، د هیـواد یـو شـمیر مهمې ستراتیژیکې سیمې یې هم ونیولې او د درژیم ځواکونو لپـاره یـې سرخوږی جوړ کړ.

د ناټو پوځي ماموریت د ختمیدو پـر مهـال ټاکـل شـوې وه چې د ۲۰۱۶ کال تر پای پورې به ټول بهرني پوځیان لـه افغانسـتان څخه وځـي، د دوی شـتون بـه یـوازې تـر امریکـایي سـفارت او پوځي اډو پورې محدود شي. مگـر کلـه چـې د امریکـا منتخب ولسمشر ټرمپ د واک په گدۍ کینول شو، نـو افغانسـتان کـې نـا امني او د گډوډ حکومت خپلمنځي اختلافات یو ځل بیـا اوج تـه ورسیدل، چـې پـه پایلـه کـې یـې امریکـائي چـارواکي ور خطـا شـول، د نـاټو پـوځي ماموریـت ختمیدل یې یوه تېروتنه وگڼله.

د یــــادونې وړ ده چــــې افغانستان نسبتا تیرو کلونو ته نـا امنه او د اداري فساد کچـه لـوړه روانه ده، د رژیم مشرانو تـرمنځ اختلافات ورځ تـر بلـې مـخ پـه زیاتیدو دي، د مرکزي رژیـم پـر وړاندې ائتلافونه جوړیږي، هـره ورځ یې مشرانو څخـه د اسـتعفی غوښتنې کیـږي، پـه ځـانگړي ډول کابـل کـې لاریونونـه تـرسره کیږي، گډ حکومت پر بې کفـایتۍ او اداري فسـاد بانـدې ککـړ گڼل کیږي.

یقینا چې د گډوډ رژیم څخه لار ورکه ده، لـه یـوې خـوا د طالبانو سره په شدیده جگړه کې نښتی ، له بلې خـوا د خپلمنځي اختلافاتو ښکار دی چې هره لحظه د کودتا اونوروگډوډیوامکان لیدل کیږي، له بلې خوا بیا د امریکا له پامه هـم غورځـول شـوی دی.

رژیم په دې اند دی چې د بهرنیو پوځیانو په راتگ سره بـه د افغانستان ستونزې حل شي، مگر کانگریس کې بیا افغانستان ته د پوځیانو لیږلو باندې اختلافات روان دي، او د نـاټو سرمشـریزه غونډه هم بې پایلې پای ته ورسیده.

نو پدې اساس ویلای شو چې بهرني پوځیـان بـه هیڅکلـه د مخ په ځوړ رژیم په درد ونخوري، بلکې نور به هـم سـتونزې را وپنځوي، مرگونه اوتباهي به یوڅوپه څوشي ، ځکه چې دوسـتم، عطا محمد نور، صلاح الدین رباني او محقق هـم د بهرنیـو کړیـو پوره ملاتړ لري اودهمدغه ملاتړ پـه تکیـه یـې داشرف غني پـه خلاف پائتلاف وکړ، نو داسې ښکاري چې گډوډي بـه نـوره هـم زیاته شي او بالآخره خپلمنځي جگړې به یو ځل بیا زور واخلي.

# آیا امریکا له شمالي کوریا سره

## د اټومي جګړې هوډ لري؟

خالد خړګند

په امریکا کې د ډونالد ټرمپ قدرت ته له رسیدو سره سم، د امریکا او شمالي کوریا لانجې هغه وخت زور واخیست چې شمالي کوریا د اټومي توغندیو په ازموینه لاس پورې کړ. د دې ازموینې په پایله کې امریکا یو زیات شمیر جنګي بیړۍ سیمې ته واستولې چې پکې الوتکې وړونکې بیړۍ هم شاملې وې؛ اېخوا د دې کړنې په ځواب کې شمالي کوریا ګواښ وکړ چې د هر ډول هڅوونکې کړنې ځواب به په اټومي توغندیو ورکړي (بی بی سی، اپریل ۱۷مه ۲۰۱۷).

اوس پوښتنه داده چې د دې ډول ناندریو تر شاه څه دي؟ او ایا دغه ناندرۍ به د دواړو هوادو ترمنځ د اټومي جګړې تر پولې ورسیږي؟

د شمالي کوریا کوچنۍ جغرافیه (کابو ۱۲۰ زره کیلو متره) ، کمونستي رژیم او شنډ شوي اقتصاد ته په کتو سره دا جوتیږي چې شمالي کوریا د امریکا لپاره د یو ستر دښمن په توګه نه شي جوړیدلی او نه هم د امریکا تر مشرۍ لاندې نړیوال نظم ته ګواښ دی. بلکې اصلي مسئله چین دی، امریکا غواړي چې د چین په پولو کې تل کړکیچ جاري وساتي او هغه د امریکا په لاس جوړ شوو دیوالو کې کلابند کړي.

دا ځکه چې امریکا د چین له مخ پر ودې اقتصاد، نظامي وړتیا، ستر نفوس او سیمه ییزې برلاسۍ څخه سخت په ویره کې ده او په همدې موخه ورته ستونزې جوړوي. له یوې خوا یې له هند سره مرزې لانجه، له بل خوا یې چین له جاپان، مالیزیا، فلیپین او ویتنام سره د جنوبي چین په سمندرګي کې د مصنوعي جزیرو د جوړولو له امله په لانجو سره اخته کړی دی او غواړي چې نړۍ ته د چین د سوداګرۍ لار هم بنده کړي.

امریکا یوازې په پورته اقداماتو بسنه نه ده کړې، په ۲۰۱۲ز کال کې ٪۶۰ سمندریز پوځ لرې ختیځ ته واسته وه او همدا اوس د چین ګرد چاپیره یې ۲۵۰ زره پوځ ځای په ځای کړی چې یوازې په جنوبي کوریا کې ۲۸ زره پوځیان لري. په دومره ستره کچه د پوځیانو او وسلو ځای په ځای کول هغه څه دي چې امریکا یې د چین د محدود ساتلو په هدف تر سره کوي، نه د کوچنۍ شمالي کوریا.

همدارنګه د لاندې د لایلو او شواهدو له مخې ویلی شو چې امریکا له شمالي کوریا سره د جګړې هوډ نه لري او نه غواړي چې له شمالي کوریا سره په نظامي جګړه کې ښکیل شي:

۱ -د شمالي کوریا بالستیک توغندیو ازمویل؛ کله چې امریکا په شمالي کوریا د برید ګواښ وکړ او د بهرنیو چارو وزیر رکس تیلر سن و ویل: "زموږ د صبر پیمانه ډکه شوې ده او هر څه د میز په سر اینبي دي"، (رویترز ۱۷ اپریل ۲۰۱۷ ز). نو په ځواب کې شمالي کوریا بالستیک توغندي و ازمایل او وې ویل چې دا توغندي د امریکا خاوره په نښه کولی شي.

۲ -شمالي کوریا د لویو وچو ویشتونکو توغندیو ادعا وکړه او وې ویل چې کولی شي امریکایې اهداف په سیمه او حتی په خپله امریکایې خاوره کې په نښه کړي.

۳ -بله اساسي خبره دا ده چې لا تر اوسه په جنوبي کوريا کې د THAADدفاعي سيستم نصب شوی نه دی. نو پورته مسايلو امريکا د شمالي کوريا د نظامي وړتيا په اړه په شک کې واچوله او امريکا داسې جګړې ته زړه نه ښه کوي چې ډېره زيان منه شي او يا دا چې خپله خاوره يې تر تهديد لاندې وي.

خو امريکا غواړي چې په چين فشار راوړي تر څو شمالي کوريا و هڅوي چې له خپل اټومي پروګرام څخه لاس په سر شي او چين د شمالي کوريا له ملاتړه لاس واخلي. که چين دا کار وکړي، نو ورته به ستره شرمندګي او تاريخي ماتې وي .

خو امريکا بله لار هم لري؛ هغه روسيه ده. امريکا د چين تر څنګ، هڅه کوي چې د کوريا په مسله کې روسيه هم له ځان سره ملګرې کړي او په دې يې قانع کړي چې د شمالي کوريا په کړکيچ کې له امريکايې دريځ څخه ملاتړ وکړي؛ که چېرته امريکا په دې کار برلاسې شي، نو هغه وخت په ډېر احتمال چې د چين پروا هم نه لري او د روسيې ستر پوځ به د شمالي کوريا به ضد و کاروي. خو دا لا تر اوسه معلومه نه ده چې روسيه به دا حماقت وکړي او کنه؟

اما، وضعيت ډېر نازک دی، هره شيبه د دې شونتيا شته ده چې د لږ غفلت او بې پروايي له وجې؛ د جګړې توکي اور واخلي او دغه بې ثباته نړۍ له يو بل بشري ناورين سره مخ کړي. دا د امريکا او شمالي کوريا په روان کړکيچ پروت واقعيت دی، او هغه څخه دي چې د پردې تر شا يې امريکايې لوری د لاسته راړلو نيت لري. خو چين هم دا پوره درک کوي چې د لوبې اصلي هدف شمالي کوريا نه، بلکې خپله چين دی، نو په همدې خاطر د کړکيچ سوله ييز حل غواړي او د امريکا د هر نظامي اقدام ضد دريځ غوره کوي .

له بده مرغه؛ چې اوسنۍ نړۍ د انسان په جامو کې د ژويو له خوا اداره کيږي، چې د خپلو ګټو لپاره د سلګونو زره انسانو ژوند ورته هيڅ ارزښت نه لري؛ خو هغه وخت به بشريت د يو سوکاله او ډاډمن ژوند څښتن شي، چې سيمه او نړۍ د اسماني قانون او په هغه باندې د مومِنو انسانانو له خوا اداره او رهبري شي.

## قطري اونيزه:

## امريکا د اروپايي هېوادونو د وېرولو لپاره په افغانستان کې وروستي بريدونه پلان کړي وو

امريکا د ماتې په حال کې ده، خو هڅه کوي اروپايي ټولنه وکاروي چې د ناټو وروستۍ غونډه يې ښه بېلګه ده

امريکا اوس هغه د ۲۰مې پېړۍ د پای پياوړې امريکا نه ده، بلکې امريکا دننه فاسده شوې ده او هر څه وران دي. داعش هم د امريکا په مشوره او مشرۍ رامنځته شوی دی او موخه يې دا ده چې دلته د خپلو ځواکونو د ډېرولو لپاره زمينه برابره کړي

دوحه – په افغانستان کې وروستۍ چاودنې امريکا پلان کړې وې او غوښتل يې اروپايي هېوادونه ووېروي. د الرأيه په نوم قطرۍ اونيزې ويلي چې امريکا په افغانستان کې له ماتې سره مخ ده او د اروپايي هېوادونو د وېرولو لپاره يې وروستي بريدونه پلان کړي وو. د اونيزې په باور، دومره پېچلي بريدونه يوازې ستر او خطرناک هېوادونه کولای شي. سرچينې زياته کړې، داعش هم د امريکا په مشوره او مشرۍ رامنځته شوی دی او موخه يې دا ده چې دلته د خپلو ځواکونو د ډېرولو لپاره زمينه برابره کړي.

په مطلب کې راغلي چې امريکا او کابل حکومت له طالبانو سره د سولې د خبرو رښتينی هوډ نه لري له همدې امله د دغې ډلې غوښتنو ته ارزښت نه ورکوي. الرأيه زياتوي چې امريکا اوس هغه د ۲۰مې پېړۍ د پای پياوړې امريکا نه ده، بلکې امريکا دننه فاسده شوې ده او هر څه وران دي. د نشريې په باور، امريکا د ماتې په حال کې ده، خو هڅه کوي اروپايي ټولنه وکاروي چې د ناټو وروستۍ غونډه يې ښه بېلګه ده. الرأيه زياتوي، امريکا به هڅه وکړي د افغانستان د ناامنۍ، ماتې او جګړې پړه پر اروپايي ټولنې واچوي او ناټو هم په ناخبره توګه د امريکا په لوبو کې کارول کېږي.

# دموکراسی جانکری بدتر

# از هر نوع نظام

نویسنده: شهزاد

بعد ازیازدهم سپتمبر ۲۰۰۱م با سقوط نظام امارت اسلامی روی کارآمدن نظام دموکراسی وبا ورود کشورهای خارجی و کمکهای میلیارد دالری آن ها در افغانستان، امیدواری های مردم به قدری افزایش یافته بودکه برخی می گفتند:ما تا پنجسال آینده به سطح کشورهای ایران و پاکستان خواهیم رسید، تا ده سال آینده به سطح کشورهای چاپان، دوبی وغیره خواهیم رسید.

اما باگذشت زمان این رویای افغان ها به واقعیت نپیوست؛ نه تنهاروی پیشرفت وترقی را ندی دند بلکه مشکلات آن ها افزون گردید. تاجایی که امروزه مردم ازحکومت دموکراسی جانکری آن قدر بیزار شده اندکه از هیچ نوع حکومتی تا حال به اینسطح بیزار نبودند.

مردم افغانستان دراوایل روی کارآمدن نظام دموکراسی امریکایی وشنیدن ورود کمکهای میلیاردها دالری کشورهای کفری، فکر می کردند که وطن آن هااز یک سرزمین زراعتی به یک کشورصنعتی مبدل شده و از مشکلات امنیتی، اقتصادی، فقرو بیکاری که با آن ها دست و پنجه نرم می کنند کاسته خواهد شد.

ولی باورود نیروهای نظامی غرب در افغانستان نه تنها امنیت مردم تأمین نشد، بلکه مشکلات امنیتی به اوج خود رسید. مردم افغانستان مشکلات امنیتی راتجربه کردند که قبل از آن هرکز تجربه نکرده بودند .از قتل وترور افراد گرفته تا اختطاف کودکانو دزدی های مسلحانه، آن قدرمردم را به تشوی شکرده است که بعد از نمازشام جرأت بیرونشدن از خانه های شان را ندارند. در طی این هفده سال حاکمیت نظام دموکراسی، مردم افغانستان شبی نیست که از رسانه هاکشته شدن چندین نفر را توسط انفجارها و قتل های زنجیره یی و حملات نیروهای خارجی نشنوند.

سوالاتی درذهن تمام مردم افغانستان خلق شده که چرا ده ها کشورنمی توانند امنیت را در افغانستان تأمین کنند؟ پاسخ این دو گپ خواهد بود: یا نمی توانند و یا هم نمی خواهند امنیت در این سرزمین تأمین گردد. زیرا جنگ و ناامنی در افغانستان، حضور امریکایی ها و شرکای غربی اش را تسجیل نموده و منفعت آن ها را تأمین می نماید.

هم چنین ورود کمکهای میلیارد دالری نه تنها مشکلات اقتصادی مردم راحل نکرد که به مراتب به مشکلات اقتصادی آن هاافزوده و ورودکمک های میلیارددالری عده ی اندکی ازمردم را ثروت مندو عده ی کثیری ازمردم را فقیرترساخته است و از جانبدیگر ورود این کمک های میلیارددالری قدرت خریدبرخی را افزایشداده و باعث افزایش قیمت هادر بازار گردیدهاست که عده ی کثیری از مردم توانایی خرید نان راندارند و روزانه به فقر آن هاافزوده می شود. این فقر آن قدر مردمرا به تنگ رسانده که به همان زندگی ابتدایی و زراعتی خویش راضی هستند ولی ازکمک های کشورهای خارجی و حضور شان در افغانستان بیزار اند.

با تطبیق نظام دموکراسی وایجاد بازار آزاد، فسادادارى در کشوربه اوج خویش رسیده تا جاییکه با ادارات دولتی حرف بزنی باید رشوت بدهی؛ چون در نظام دموکراسی معیار همه چیزمنفعت است نه حلال و حرام، از این جاست که مردم از

احکام شرعی دور شده، به خاطرمنفعت شخصی خویشاز هیچ گونه فسادی دریغ نمی کنند.

و ازجهت دیگر باطویل شدن بروکراسی، رونـدکار دولت آن قدرطولانی شده که مردم برای اجرای کارهای خـویش باید ماه ها حتـی سال هـا در پشت دروازه هـای ادارات سرگـردان باشند؛ مثلاً: برای اخذ تذکره بایدیک الی دوماه و یـابرای اخذ پاسپورت تا حدود سه ماه در پشت دروازههـای ادارات دولتـی سرگـردان باشـند کـه ایـن وضـعیت مـردم رامجبـور بـه دادن رشوت کرده وزمینه فساد اداری را در ادارات دولتـی مهیـا مـی سـازد. زیـرا مـردم در دوران حکومتـداری طالبـان-کـه نـه افرادمسلکی و نه هم تکنولوژی بود- درادارات دولتـی بـه ایـن سرگردانی سردچارنبودند؛ بلکه در ظرف یک الی دوروز کارهـای شان اجرا می شد .

هم چنین می بینیم کـه بـاافزایش مکاتـب ودانشگاه هـا وگسترش علم، مردم بجای اینکه قـانون پذیرشوند و ازفساد دور شوند،قانون گریز می شوندو به فسادنزدیک مـی گردنـد؛ علت این همه مشکلات درچیست؟

در نتیجه می توان گفت: هـر چقدر کشـور مـا بـه کمک های کشورهای خارجی وابسته باشد، به همان اندازه مشکلات کشور ما در حال افزایش می باشد. چون در فضایی کپیتالیزم- نظام سرمایه داری- معیار همه چیـز منفعت مـی باشد، هیـچ کشوری بدون منفعت خویش برای ما کمک نمـی کنـد. مردم عزیز ما باید بدانند که ایـن کمک هـای خـارجی بـه نفـع شان نبوده بلکه کاملاً بـه ضرر شـان مـی باشد. اگرچـه عیش ایـن کمک هـای میلیـارد دالـری را خـانواده هـای وکیـل هـا، وزراء، اعضای فامیل ریـیس جمهـور و ریـیس اجرائیـه در کشـورهای غربی می کنند، چرا بهای آن را مـردم مظلوم بـا جـان خـویش بدهند. بیایید همـه دست بـه دست هـم داده بـه کمک هـای کشورهای غربی و حضور شان نـه گفتـه و بـرای تبـدیل کـردن فضایی منفعت کپیتـالیزم، بـه فضـایی اسـلامی و بـرای ایجـاد نظام سیاسی واقعی اسلام فعالیت نماییم تـا بـا تطبیـق کامـل اسلام از این مشکلات رهایی یابیم.

## د الـمــان اســتخبارات پنځــه میاشــتې وړانـدې د کابـل لـه وروسـتي خـونړي بريده خبر وو

دغـه اسـتخبارات ان پـه دې پوهېـدل چـې دا بريـد بـه د فاصله موادو د ايسـتلو د يوه ټانکر په وسيله ترسره کېږي اويـوه مياشت وړاندې يـې د دې بريـد پـه اړه لـومړني شـواهد ترلاسـه کړي وو

د «ار بـي بـي — انفـور راډيـو» لـه راپـور سـره سـم چاودېدونکي توکي لـه هغـو لـس برابـره ډېـر وو چـې خلکـو تـه وښودل شول، دغه توکي ۱۰۰۰ نه، بلکې ۱۰ زره کيلـو ګرامـه وو.

د روان کال د غبرګولي په لسمه په ترسره شـوي بريـد کـې لږ تـر لـږه ۱۵۰ افغانـان ووژل شـول او نـږدې ۵۰۰ نـور ټپيـان شول چې ډېری يې غير نظامي کسان وو

کابل — نـوي ريپوټونـه ښـيي چـې د المـان اسـتخبارات د کابل د وروستي خونړي بريد له ترسره کېدو ۵ مياشتې وړانـدې خبر وو او ان په دې پوهېدل چې دا بريـد بـه د فاصـله مـوادو د ايستلو د يوه ټانکر په وسيله ترسره کېږي. له يوه راپور سره سم د المان استخباراتي شبکې يوه مياشـت وړانـدې د دې بريد پـه اړه لومړني شواهد ترلاسه کړي وو.

«ار بي بي — انفور راډيو» د استخباراتي کړيو په وينا خبر ورکـړی چـې د المـان اسـتخباراتي شـبکې پـه دې اړه خبـرداری ورکـړی و، تر دې چې دا هم معلومه وه چې دا بريد به څـه ډول سر ته رسيږي.

سرچينې ويلي چـې «ايـم آی ډي» يـا د المـان اسـتخباراتي شبکې د جنوری په اتلسمه، يعنې پوره پنځه مياشـتې وړانـدې د دې بريد د طرحې پـه اړه معلومـات ترلاسـه کـړي وو او همغـه مهال ويل شوي وو چې د فاصـله توکـو د ايسـتلو پـه يـوه ټـانکر کـې بـه چاودېـدونکي تـوکي ځـای پـر ځـای کېـږي او چـاودول کېږي. وروسته بيا هم خبرداري ورکړل شوي وو.

# د سولې سوداګر

ډاکټر فیض محمد ځلاند

له بده مرغه جګړه له انساني ټولنو ټول ارزښتونه تروړي، له افغانانو هم جګړې ګڼ ارزښتونه اخیستي دي. له تیرو شپاړسو کلونو راهیسې په افغانستان کې په هر څه سودا د ازاد بازار اساسي موخه ګڼلی شوې ده، په ادارو کې مو هر څه پروژوي شول حتی روغتیا او ښوونه روزنه هم. که د افغانستان میلونرانو ته ځغلنده نظر واچوو، ګڼ یې نه پخوا سوداګر وو او نه هم اوس کوم تولیدي کار کوي، خو نن په کابل ښار کې د جریبداره کورونو، لوړو ماڼیو، بلند منزلونو خاوندان دي.

د پخواني حکومت اساس پر ملي مصلحت ولاړ وو، هر څه او هر چاته یې رشوت ورکاوه، کرزي صیب پخپله یوه وینا کې وویل چې وه خلکو غلا وکړئ، خو له افغانستان څخه مو پیسی بهر مه باسئ. مطلب دا چې غلا، چور، تالان او فساد ستونزه نه ده، ستونزه دا ده چې د غلا پیسې له ګران وطنه بهر باسي. پیسې په ولسواکۍ کې د واک یا قدرت سرچینه ګڼلی کیږي، هغوی چې په چور، تالان کې پیسې پیدا کړي، چاغ شول، وېړسیدل په حکومت یې فشار را وړ چې اوس نو چوکۍ، ارګاه، بارګاه هم باید ولري. دوی باید زرې موټر، باډي ګارډ ولري، حکومت چې له پنځه ویشتو وزارتونو، ۳۴ ولایتونو جوړ دی، نو دې چورواکو، پیسه دارو ته یې د ویش او تالان لپاره نور څه نه لرل، نو د سولې په سر یې سوداګرۍ ته مخه کړه، د سولې د عالي شورا پروژه یې ورته تاسیس کړه.

د سولې عالي شورا چې د سلګونو میلیونو ډالرو بودیجه یې په ځان کې لرله، د هغو کسانو په لمن کې ولویده چې عمر یې په جګړه کې تېر شوی، جګړه یې د سیاسي ژوند تر ټولو لوړه اړتیا ده، د طالب یا بل هر مخالف حذف یې د سیاسي مبارزې موخه ده. د دې تر څنګ یې د سولې عالي شورا د سولې پر ځای د ادغام په پروژو تمرکز درلود، سوله په ساختماني قرار دادونو کې بنده شوه، مخ پټي کسان به یې د طالب په نامه په بدخشان، تخار، بغلان کې دارنګه وخت نا وخته په کندهار، کنړ، لغمان کې رسنیو ته وړاندې کړل، زړې وسلې به یې په اوږه وې، له دې به یې سوداګریز اعلان جوړ کړ، خپلې رسنۍ ته به یې په هره دقیقه اعلان زرګونه ډالر ورکاوه او په دې توګه یې نړۍ، خپل وطنوال او ځان د سولې په سوداګرۍ کې ګنګس پاتې کړل، اعلان به یې په «غولیدلو وروڼو» پیل کیده!

ډاکتر غني چې کله ټاکنو ته ودریده په شارجه کې طالبانوته نیږدې زینوخلکو سره پټې خبرې وکړې، غني هوکړه وکړه چې په شپږو میاشتو کې به له طالبانو سره به سوله حتمي کوي. د غني د سولې پروسه کله هم په خبرو کې له شپږو میاشتو ونه اوښته، خو چې کله یې د ملي وحدت پروژه په ارګ کې رامنځته کړه د جګړې ستراتیژیک تړون یې لاسلیک کړ، د سولې ټولې ژمنې یې هیرې کړې، جګړې ته یې کار ووایه، کانفرانس په کانفرانس وګرځیده تر څو د جګړې لپاره پنځه اعشاریه یو میلیارد ډالره را ټول کړي، همداسې یې وکړل، جګړه یې د بهرنیانو په بې پیلوټه الوتکو بدرګه کړه، باګرام یې له افغانان ډک کړ، کندوز یې دوه ځلې سقوط کړ، له موسی کلا یې ستراتیژیک په شاتګ وکړ، د

ښارونو ساتلو ته يې کار ووايه او جګړه يې له کلو ولسواليو او دا دی له ولسواليو لويو ښارونو ته را لنډه کړه.

د پير صيب په ګمارنه يې په سر کې د محاذ ډلې ته سياسي رشوت ورکړ، هغه چې ومړ اوس يې د محقق د ځپلو لپاره، د هزاره ګانو د خپلولو لپاره د سولې پروژه په خليلي صيب وپلورله، د دې تر څنګ يې د پيسو او چړچو د کنټرول لپاره خپل کمشنکار سلاکار په کې وګماره، په دې توګه يې په لومړي ځل د سولې عالي شورا د ارګ شورا کړه، هغه تمثيلي استقلاليت يې هم له شورا واخيست.

د خليلي صيب ګمارنه کې يې ډېر پام کړی، د خليلي صيب په ګمارنه يې د کرزي ټيم کمزوری کړ، خليلي د کرزي په اپوزيسون کې تر ډيره د هزاره ګانو تشه ډکوله، دويم دا چې په دې وروستيو کې محقق د ارګ لپاره سر خوږ و، د محقق په وړاندې يې هم د خليلي په ګمارنه د توازن د ساتلو لپاره ګټه پورته کړه، د خليلي ځوی يې وار دمخه په اذربايجان کې د سفير په توګه هم ګمارلی دی، غني په سياسي رشوت کې له هر بل چا ښه پوهيږي ځکه غني د ګټې او تاوان اندازه د خپل سياسي فکر محور يا چورليز ګڼي.

په دې توګه، په دې وروستيو کې د سولې پورې تړلي ګڼې هيلې په يو نه يو ډول د ملي وحدت د حکومت د ستراتيژيکو لاس وهنو ښکار شوي، موږ چې په خپلواکه توګه د سولې خوځښتونو، ولسي مبارزې ته کار ويلي، زموږ تر منځ هم ارګ د ګنو حرکتونو د را ټوکولو سبب شوی دی. همدا اوس په کابل کې د سولې تر نامه لاندې په لسګونه جوړښتونه په فعاليت بوخت دي چې اکثره يې د امنيت له شورا او ارګ څخه معاش او مصارف اخلي. موږ چې تير ځل قطر ته په سفر تللي وو، د قطر طالبانو موږ ته وويل چې له کابله لسګونه شوراګانې، مشران او د سولې سوداګر ورسره د ليدو غوښتنه کوي، دوی نه پوهيږي چې څوک سولې ته کار کوي او څوک د سولې خلاف.

موږ لومړني کسان وو چې د قطر د دفتر سره مو د پګواش ناستې رسنيو ته برالا کړې، بيا مو له قطر سره د ليدو ټول جريان رسنيو ته وړاندې کړ، د سولې ګڼې ناستې مو په کابل او نورو ښارونو کې د ولسي- پوهاوي لپاره ترسره کړي، هيله ده چې د سولې رينښتوني مبارزين د ولسي هيلو د پياوړتيا لپاره د حکومت او مخالفينو ترمنځ د منځګړي د کردار د ادا کولو لپاره را ودانګي، نه دا چې د مظلومو افغانانو له هيلو سره سودا وکړي.

د ملي وحدت له اوسني جوړښت څخه د سولې تمه ماته بابيزه ښکاري، تر څو چې ولسي فشار رامنځته نه کړو، هيڅوک هم افغان سولې ته ژمن نه دي.

يا رب توفيق!

# ملګـري ملتــونه:

## د الجـزيري ټلـويزيون د بنديدو غوښتنه د بيان پر ازادۍ تيری دی

**دا شبکه په ميليونونو ليدونکي لري او خپرونې يې هم ټولې د قانون او اصولو په چوکاټ کې برابرې دي**

نيويارك – ملګري ملتونه وايي، د الجزيرې ټلويزيون د تړلو غوښتنه د بيان او عقيدې پر ازادۍ تيری او د نه منلو غوښتنه ده. د ملګرو ملتونو سازمان د بشري حقونو د عالي کمېشنرۍ مشر رعدالحسين وايي، د سعودي عربستان، مصر، بحرين او متحده عربي اماراتو له لوري د الجزيري ټلويزيون د تړل کېدو غوښتنه د اندېښنې وړ ده.

رعدالحسين زياتوي، د الجزيرې خپرونې که د چا خوښېږي يا نه؛ دا شبکه په ميليونونو ليدونکي لري او خپرونې يې هم ټولې د قانون او اصولو په چوکاټ کې برابرې دي. د الجزيرې ټلويزيوني شبکې تړل د هغو ۱۳ غوښتنو له ډلې يوه ده چې سعودي عربستان، بحرين، مصر- او متحده عربي اماراتو له قطر سره د اړيکو د بېرته عادي کولو په بدل کې له هغه هېواد سره شريکې کړې دي.

# ظالم چارواکي او غیر سیاسي رعیت!

لیکوال: احمد ولي فروتن

شپاړس کاله کیږي چې افغانستان کې د دیموکراسي نظام پر کټ ناست ظالمه او مفسده چارواکي د افغانستان ولس وینې زبېښي، او هیچ ندي چې دوي ماړه شي. دافغانستان مظلوم ولس د امریکا خونړي سیاست له امله خپل ځانونه د لاسه ورکوي. لکه څنگه چې د روژې په میاشت د یو لوي موټر بمب چاودني شاهد وو، چې ډیرو ملکیانو په کښې خپله ژوند د لاسه ورکړ او زخمیان شول.

دا تاوتریخ والي په داسې حال کې خپلې لوړې کچې ته رسیږي چې د امریکا دفاع وزیر د روان کال په لومړیو کابل ته د یو نه اعلان شوی سفر په ترځ کی د تاو تریخ والي زیږي د افغانستان چارواکو او افغان ولس ته ورکړي وو. دا تاوتریخ والي چې ورځ تر بلې کچه یې پورته روانه ده د امریکا د موخوو لپاره مخکې د مخکې یو پلان شوي سیاست په ترځ کې سرته رسیږي؛ او گډ حکومت خپل وړوکي سهم چې د امریکا خونړي سیاست د پلي کیدو لپاره هسه کوی په دې کوښښ دي چې څنگه وکوالي شي عام ذهنیت وغولوي او یایې په یو سیاسي شکل د عام خلکو احساسات د یو لاریون په واسطه سوړ کړي؛ چې دا د مدني ټولني ورپر غاړه یو لوي مسؤلیت بلل کیږي او د هغوي له طریقه سرته رسیږي.

کله چې یوه لویه خونړۍ چاودنه وشي عام احساسات را پورته شي او د غچ اخیستولو په اند د حکومت پروړاندي ولاړ او لاس پر لاس شي. خو مگر ورسره د مدني تولنو او یو شمیر کسانو له خوا د غچ اخیستلو شعارنو او د عام خلکو چیغې را پورته شي چې د پولیسو او عام ولس په نښتو او د هوایي یا هم قصدي ډزو په ترڅکې یو بل نوي مضمون را جوړ شي او هغه مخکیني شعار پرځای پاتې شي؛ کوم چې د دوي موخه بلل شوي وه او پرځایي بل شعار را پورته شي. دا حال دوام وموومي او د څو ورځو په تیریدو سره هغه احساسات چې دوي سره را تول کړي وو سایي وخیژي او لاریون د خپل اصلي هدف څخه پاتي شي او گډ حکومت د اصلي پیښې د یاده ایستلو لپاره لاس پر نوي جنایت ور پوري کړي.

طبعي ده کله چې یوازي احساسات پرته له یو ژور سوچ د یوي پیښې په ترځ کې را پورته شي او د یو لاریون په شکل را وپاڅیگي نو هغه لاریون ځای ته نه رسیږي؛ ځکه چې هغه احساساتي پاڅون پرته له ژور سوچ څخه د لاریون او شعارونو سره پای ته رسیږي او د وخت په تیریدو د احساساتو کچه صفر ته را ټیټه شي او انرژي د یوي واقعي حل لاري سوچ ته خلاصه شي. ځکه چې د احساساتي پاڅون هدف غچ اخیستل دي او د واقعي حل لاري پاڅون سوچ پر ځاي احساسات پردوي حاکم دي او تش احساسات پرته له ژور فکر هیڅ پایله او اغیزه د دوي پر ستونزه نلري. دا د یو احساساتي پاڅون پایله ده چې د یو ظالمه حکومت پر وړاندي هیڅ اغیزه نلري او دولت خپله اساسي وظیفه چې د امریکا له خوا ورته ټاکل شوي ده پرته د ولس ډار څخه مخ ته بیایي.

که چیرته لگ د افغان گډ حکومت سیاست ته او د امریکایانو له پخوا ټاکلي شوي خونړي پالیسي ته زیر شو نو دي نتیجې ته رسیږو چې افغان چارواکي هغه له پخوا تربیه شوي غلامان دي چې د کفارو په غوښتو د خپل ولس ویني زبېښي او کفار ته لاس پر سینه ولار مزدوران دي. او د رسنیو په خوله مهربانه امریکا د خپلو موخو لپاره چې افغانستان یې یو استراتیژیک د پل ځاي بللي دي، جگړه او تاوتریخ والي د وسلې په توگه کاروي او افغان گډ حکومت ورسره لاس پروینو دي، نو په کوم منطق د داسې حکومت څخه د حل لاری غوښتونکی یوو؟

نو افغان ولس د دې پړځاي چې لاس پر احساساتي لاریونونو ووهي په کار ده چې خپله انرژي د یو واحد دولت یعني اسلامي نظام د ایجاد لپاره وکار وي او دلعنتي د دیموکراسي څخه دځان ژغوړني هڅه وکړي. نو هغه وخت که د یولاریون په شکل ولاړ هم شي نو ظالم چارواکي به په خپل کور کې له ډاره تینگ نشي. د بل پلوه که چیرته حکومت د لاریون پروړاندې غبرگون هم وښایي نو د لاریون پایله د ولس په گټه ده ځکه چې لاریون د الله سبحانه تعالی په دستور د اسلامی نظام غوښتونکی دي او که دوي خپل ځانونه هم د لاسه ورکړي نو دحق په لاره کې شهیدان دي او الله سبحانه تعالی د حق لاري شهیدان ځاي جنت ټاکلی دی.



# نیروی بیشتر،

## جنگ بیشتر و خون ریزی بیشتر!

سهاک

در هفته های اخیر، تعدادی از بلندپایه ترین مقامات نظامی امریکا در افغانستان گفته اند که برای پیروزی در جنگ افغانستان، نیاز به اعزام نیروهای بیشتر در این کشور دیده می شود. جنرال نیکلسون، فرمانده کُل نیروهای خارجی در افغانستان، جنرال جان مک کین، رییس کمیته نیروهای مسلح سنای امریکا و جنرال جوزف ووتل، فرمانده ستاد مرکزی ارتش امریکا در جلسات مختلف، یک پیام واحد را به رهبران دولت امریکا مخابره کرده اند که ما در افغانستان "در بُن بست قرار داریم" و وضعیت کنونی افغانستان "منجر به شکست استراتیژیک می شود". بناً با ارسال چند هزار نیروی بیشتر نظامی به افغانستان، اوضاع را تغییر دهیم.

در عین حال اداره دونالد ترامپ، مشغول بررسی دیدگاه ها و پیشنهادهای مختلف از ادارات نظامی و امنیتی امریکا در باره افغانستان است تا چه سیاست را در طولانی ترین جنگ تاریخ این کشور اتخاذ کند. جیمز متیس، وزیر دفاع امریکا گفته است به زودی درباره افزایش نیروهای امریکایی در افغانستان تصمیم می گیرد .

هرچند امریکا ماموریت نظامی اش را در افغانستان در اوایل سال ۲۰۱۵م پایان یافته اعلام نموده بود و طبق پیمان امنیتی دو جانبه میان رژیم کابل و امریکا ده هزار تن از نیروهایش را در قالب مشاوره، آموزش و حمایت نیروهای امنیتی افغان در افغانستان نگه داشته است؛ ولی حالا با زیر پا ماندن پیمان امنیتی و ماموریت نظامی اش در افغانستان، در تلاش اعزام نیروهای بیشتر در این کشور می باشد .

از آن جایی که امریکا از افغانستان منحیث یک پروژه نظامی برای رسیدن به اهداف استراتیژیک اش استفاده می کند، این کشور برای فریب افکار عامه در امریکا، افغانستان و جهان گاهی رول نظامی اش را به رول مشوره دهی مبدل می نماید و تعدادی از نیروهایش را از افغانستان خارج می سازد؛ و گاهی هم مجدداً نقش عملیاتی و نظامی عساکرش را از سر می گیرد و به جبهات جنگ برمی گردد.

اعزام نیروهای بیشتر به افغانستان، به معنی جنگ بیشتر و خون ریزی بیشتر می باشد. از سوی دیگر، از سَر گرفتن دوباره نقش نظامی و جنگی امریکا در افغانستان، زمینه را برای استفاده بیشتر افغانستان برای تعقیب اهداف استراتیژیک و منطقوی امریکا مساعد می سازد و برای زمینه سازی به این کار، امریکا قصداً ناامنی ها را در افغانستان افزایش می دهد. طوری که تعدادی از مقامات بلندرتبه ی نظامی امریکا و سازمان ملل از جمله جنرال جان نیکلسون و دفتر سازمان ملل متحد، افزایش ناامنی ها در سال ۲۰۱۷م در افغانستان، پیش بینی نموده اند .

هم چنان از شروع سال نو میلادی ما شاهد شدّت گرفتن جنگ در افغانستان هستیم، طوری که حنیف اتمر، مشاور امنیت ملی رژیم اخیراً بی شرمانه گفته است که روزانه ۲۸ تن در افغانستان در اثر جنگ و ناامنی جان های شان را از دست می دهند. البته این رقم رسمی و سانسور شده است، در حالی که رقم واقعی تلفات روزانه در افغانستان بیشتر از رقم ذکر شده می باشد .

پس لازم است تا مردم مسلمان افغانستان واقعیت اصلی افزایش نیروهای امریکایی را درک نمایند که هدف آن تامین صلح نه، بلکه شدّت گرفتن جنگ و افزایش ناامنی در افغانستان و منطقه می باشد که قربانی اصلی و چوب سوخت آن کودکان، زنان، جوانان و کهن سالانِ این سرزمینِ غرق در خون و پر از درد می باشد وبس.

خالد

# د اداري فساد ويروس چا دې وطن ته راووړ؟

زما په ياد دي چې د طالبانو په نظام کې زموږ د ولسوالۍ ولسوال څو روپۍ رشوت خوړلی و،دا پيښه د طالبانو په حکومت کې زما د ليدلو او له خلکو د اوريدلو له قراره د فساد لومړۍ او وروستۍ پيښه وه. د طالبانو حکومت چې کله د رشوت معامله کشف کړه، ولسوال يې د کابل نظامي محکمې ته وليږه او دمحکمې د حکم په اساس تر هغه وخته زنداني و تر څو طالبان له کابله ووتل او بيا د ټلوالې د واکمنۍ په وخت زندانيان له محابسو ازاد شول.

هغه وخت رشوت او رشوتخوري يو داسې عيب بلل کيده چې خپله رشوت خور څه بلکې د هغه قريبان او حتی کليوال به يې په دې پيغور شرميدل. رشوت د غلا او زنا په شان يو د شرم او مجازات وړ جرم ګڼل کيده چې حکومتي چارواکو ته دې که د زمري زړه هم ورکړای وای جرأت يې نه شوای کولای.

مګر د طالبانو له حکومت وروسته رشوت او اداري فساد په افغانستان کې دومره وده وکړه چې اوس خو په نړيواله کچه ددې هيواد د نوم مرادف ګڼل کيږي او چيرته چې د افغانستان د حکومت ذکر کيږي نو فساد ورسره خامخا يادېږي.

د طالبانو د حکومت له سقوط يوه لسيزه وروسته په ۲۰۱۲ ميلادي کال کې پژواک خبري اژانس د نړيوالو څارونکو په استناد وليکل چې په همدې يوه کال کې په افغانستان کې څه کم څلور مليارده ډالره پيسې د رشوت په حيث تبادله شوې او په اداري فساد کې کاريدلي دي.له دې علاوه د افغانستان حکومت څو ځله په نړيواله کچه د لومړني مفسد حکومت شرم آور لقب ترلاسه کړ. پوښتنه داده چې په افغانستان کې دا پديده له کومه شوه او ولې داسې زر دومره لوړ حد ته ورسيده؟؟

که افغانان له ځايه فسادګر او رشوتخواره وای خو په تيرو حکومتونو کې هم بايد د فساد ښکاره علائم ليدل شوي وای.مګر په تيرو حکومتونو کې د افغانستان پوليس، اداري مسؤلين او قاضيان د سيمې د ټولو هيوادونو په نسبت له اداري فساد نه پاک او رشوت يې ستر پيغور باله.

که د فساد پديدې ته او بيا يې دومره ژر خپريدو ته ژور نظر وکړو نو ښکاره معلوميږي چې اداري فساد افغانستان ته له خارجي اشغالګرو سره يوځای را ننووت. څرنګه چې کفر په هر لحاظ بدي او قباحت دی او له ځان سره ټول مفاسد ليږدوي افغانستان ته د امريکايي کافرانو له راتګ سره ټولې هغه بدمرغه پديدې راغلې چې پخوا زموږ وطن ترې تر ډيره حده محفوظ و.

له کافرانو سره يوځای اداري فساد، بې ستري،اختلاط، اعتياد، د ځمکو غصب،د ملي شتمنو اختلاس،په ملي پروسو کې تقلب، په ماشومانو جنسي تيري، بورنوونکي مظالم،فحشاء او نور ډول ډول قبائح يوځای راغلل.د امريکايي کافرانو له راتګ نه مخکې په افغانستان کې جرائم او بې بندوباري وه مګر دومره نه چې په فساد کې په نړيواله کچه لومړی مقام خپل کړو او يا د ځمکو د غصب او بيت المال د شتمنيو

په اختلاس کې نړیوال شهرت ته ورسیږو.

امریکایي کافرانو زموږ هیواد او اولس ته تر ټولو ستره ضربه دا ورکړه چې دلته یې اجتماعي قراردادونه او ټولنیز اخلاقي سیستم ونړاوه،داداري فساد، غصب او نورو جرایمو د ترویج لپاره یې داسې کار وکړ چې اوس په عامه نظر کې دې جرایمو ته څوک جرم هم نه وایي او نه پرې شرمیږي.

مګر د یرغلګرو له دې ټول ظلم او تجاوز سره سره نن سبا همدغه مفسد یرغلګر په پوره سپین سترګی را ولاړیږي او افغانانو ته د فساد او اختلاس له امله پیغور ورکوي، د امریکا د متحده ایالاتو سفیر همدا نن ویلي چې فساد په افغانستان کې د سرطان دانه ده، مګر ښاغلي سفیر دا نه دي ویلي چې د سرطان ددغې دانې ویروس چا دې هیواد ته راووړ او چا ملیاریز فساد ته زمینه سازي وکړه.

هغه څوک چې په افغانستان کې اداري فساد د یوه پیغورآمیزه شرم او ملي ستونزې په حیث پیژني په دې باید سر خلاص کړي چې تر څو خارجي اشغالګرپه دې هیواد کې وي له دې ستونزې خلاصون نشته ځکه اشغالګر په لوی لاس غواړي د بې بندوبارۍ په ترویج سره زموږ ټولنه او سیستمونه کمزوري کړي او بیا پر موږ باندې اوږد مهاله باداری ته زمینه برابره کړي.

## روسیه:

## امریکا په افغانستان کې د امنیت راوستلو پر ځای نور اهداف تعقیبوي

امریکا د افغانستان په ګډون د نړۍ په ګڼ شمېر هېوادونو کې د نظامي حضور د پراختیا هڅه کوي، خو په دې برخه کې ځانګړې ستراتېژي نه لري

روسیه او د نړۍ هېڅ هېواد نه پوهېږي چې امریکا په افغانستان کې څه کوي او له دې هېواد او سیمې سره به په راتلونکي کې څه کېږي

امریکا باید په افغانستان کې د خپلو کړنو په اړه امنیت شورا ته منظم راپورونه ورکولای چې دا کار یې نه دی کړیاو معلومه نه ده چې څه کول غواړي

د روسیې د بهرنیو چارو وزارت ویاندې ماریا زخارووا په مسکو کې د یوې خبري ناستې پر مهال ویلي چې امریکا د افغانستان په ګډون د نړۍ په ګڼ شمېر هېوادونو کې د نظامي حضور د پراختیا هڅه کوي، خو په دې برخه کې ځانګړې ستراتېژي نه لري او نه پوهېږي چې ولې باید په یادو سیمو کې سرتېري ډېر کړي. زخارووا زیاته کړې، داسې ښکاري چې امریکا په ورته اقداماتو سره له خپلو نظامي صنایعو پېښېدونکې داخلي ستونزې هواروي. نوموړې وایي، امریکا په افغانستان کې له ۱۶ کلنۍ جګړې وروسته لا هم د هغه هېواد په اړه ټاکلې ستراتېژي نه لري او سره له دې چې د امنیت شورا په اجازه یې پر افغانستان برید کړی، لا یې امنیت شورا ته د خپلو اقداماتو په اړه یو ځل هم راپور نه دی وړاندې کړی. د روسیې د بهرنیو چارو وزارت د ویاندې په خبره، روسیه او د نړۍ هېڅ هېواد نه پوهېږي چې امریکا په افغانستان کې څه کوي او له دې هېواد او سیمې سره به په راتلونکي کې څه کېږي. دا وایي، امریکا باید په افغانستان کې د خپلو کړنو په اړه امنیت شورا ته منظم راپورونه ورکولای چې دا کار یې نه دی کړی او معلومه نه ده چې څه کول غواړي. زخارووا یو ځل بیا ټینګار کړی چې امریکا په افغانستان کې د ثبات په لټه کې نه ده، له همدې امله د هغه هېواد په اړه خپله ستراتېژي پټه ساتي.

په همدې حال کې د پوځي چارو کارپوه عتیق الله امرخېل ویسا ته وویل چې د روسیې خبره دقیقه ده، ځکه چې امریکا غواړي د یو شمېر ترهګرو ډلو په واسطه خپل رقیبان په خاص ډول روسیه او چین وځپي او پر دې سیمه خپل تسلط پراخ کړي.

نوموړي زیاته کړه چې په دې لوبه کې د امریکا بریا ډېره نه تر سترګو کېږي، خو افغانستان به د سترو قدرتونو د نیابتي جګړې او سیالیو په ډګر بدل کړي.



# فصل دوم استراتیژی امـریکا؛ ادامه جنگ و وحشت

(تغــیر)

اخیراً رسانه های مختلف خبر از استراتیژی جدید امریکا می دهند. استراتیژی که طرح آن از سوی مشاور ارشد نظامی و پالیسی خارجی رئیس جمهور امریکا پیشنهاد شده است که به گفته مقامات بلند پایه امریکایی بن بست موجود را در افغانستان خواهد شکست. از جانب دیگر، این استراتیژی یکبار دیگر امریکا را وارد جبهات جنگ در افغانستان می نماید. این در حالیست که این استراتیژی شامل افزایش نیروهای امریکایی در افغانستان می شود و هم چنان صلاحیت راه اندازی حمله های گسترده تر را علیه طالبان دولت فراهم می سازد.

با این وجود، می توان گفت که استراتیژی جدید امریکا در واقع تلاش برای حفظ حالت موجود یعنی ناامنی و بی ثباتی است تا از این طریق بهانه ی خوبی برای حضور خود در افغانستان داشته باشد که این خود ادامه جنگ، ناامنی، وحشت و کشتار مسلمانان افغانستان را در پی خواهد داشت. این استراتیژی نه برای از میان بردن ناامنی و بی ثباتی و آوردن صلح، بلکه اساساً برای از سر گیری جنگ در افغانستان طرح ریزی شده است. اگرچه مقامات مختلف دولت استعماری امریکا برای زمینه سازی حضور بیشتر نیروهای خود در افغانستان بهانه شکستن بن بست حالت حاضر و دست یافتن به صلح و ثبات را پیش کش می کنند، اما آوردن صلح و ثبات بهانه ی خوبی است تا امریکا از این طریق اهداف بزرگ تر خود را دنبال کند.

بنابراین، می توان گفت که افغانستان مسیر جنگ و ناامنی است که صلح و ثبات از آن عبور نمی کند. در واقع صلح و ثباتی که مردم افغانستان آرزوی آن را دارند در گرو جنگ و ناامنی است یا می توان گفت در قبضه سیاست های فرا افغانستانی امریکاست که صلح و ثبات در موجودیت آن خیالی بیش نیست. بر علاوه، فصل دوم استراتیژی امریکا مرحله دوم حالت اسفباری است که در نتیجه ۱۶ سال حضور بالای مردم افغانستان تحمیل گردیده است .

این در حالیست که حکومت فاسد، بی کفایت، قبیله ای، فرقه ای و منفور امریکا(به نقل از واشنگتن تایمز) در حال پرده پوشی این واقعیت است تا مردم فریب بازی صلح این حکومت را خورده و متوجه استراتیژی که صلح در کنار آن تیاتر مسخره ای بیش نیست، نشوند. تیاتری که حضور هر چه بیشتر و دوام دار تر نیروهای اشغالگر امریکایی را در افغانستان تضمین خواهد کرد .

صلح و ثباتی که مردم افغانستان آرزوی آن را دارند با موجودیت نیروهای اشغالگر امریکایی که جز قتل و کشتار مردم بی گناه به بهانه های مختلف کار دیگری ندارند، دور از تصور است. اساساً جنگی را که امریکا در افغانستان به پیش می برد و اهدافی را که در نتیجه آن می خواهد بدست آورد با صلح و ثبات سازگار نیست. در واقع موجودیت صلح و ثبات در افغانستان مانع اساسی برای بدست آوردن اهدافی است که امریکا میلیاردها دالر را صرف آن کرده است.

# داسلام د پنځم رکن

## (حج) مسائل او احکام

مولوي امین الله

داسلام په ارکانوکې پنځم رکن دبیت الله شریف حج دی.

**لومړی دحج لغوي معنا:**

حج دلغت له مخې دیو ستر شي قصدکولو ته حج وايي.

**دحج اصطلاحي معنا :**

حج دصطلاح له مخې له ځانګړې صفت،ځانګړي وخت اوله ځانګړیو شرایطو سره سم د بیت الله شریف زیارت کولو قصد ته حج ویل کیږي

دشریعت له خې حج له هغه جامع اوهر اړخیز عبادت څخه عبارت دی چې مسلمانان دالله تعالی کوربیت الله شریف ته په ورتلو سره ځانګړي عملونه اوعبادات تر سره کوي.

دنوم کیښودنې لامل یې دادی چې مسلمان ددې عبادت دترسره کولو په مهال دالله تعالی دکوربیت الله شریف دزیارت کولو اراده اوقصد کوي..نو له همدې امله حج ته حج ویل کیږي.

**دفرضیت دلایل:**

دالله تعالی داسترعبادت اوداسلام پنځم رکن په درې ډوله ډلایلو سره ثابت شوی دی:

لومړی: دقرانکریم ایاتونه.

دوهم: نبوي احادیث.

دریم: دامت اجماع.

لومړی: دقرانکریم ایاتونهن په دې اړه الله تعالی داسې فرمایي:{ وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنْ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلاً}

پر خلکو د الله داحق (فرض) دی چې که څوک دهغه کور ته درسیدو وس ولري دهغه حج دې وکړي، او که څوک ددې فرمان له عملي کولو نه انکار وکړي نو هغه دې په دې پوه وي چې الله له ټولو نړیوالو څخه بې نیازه دی.

الله تعالی ابراهیم علیه السلام ته داسې فرمایلي و : وَأَذِّن فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ يَأْتُوكَ رِجَالاً وَعَلَى كُلِّ ضَامِرٍ يَأْتِينَ مِن كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ (۲۷)

او خلکو ته د حج داداکولو عمومي اعلان وکړه چې هغوی تاته له هر لیرې مزله پلي او پر اوښانوسپاره راشي

**دوهم:نبوي احادیث:**

دحج په اړه ډیرنبوي احادیث مونږ ته په درستوسندونو سره رارسیدلي دي چې ځینې یې په لاندې توګه دی :

دمسلم شریف په حدیث کې دحج اونورو ارکانو په اړه داسې راغلي دي : { بُنِيَ الْإِسْلَامُ عَلَى خَمْسٍ : شَهَادَةِ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ ، وَإِقَامِ الصَّلَاةِ ، وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ ، وَصَوْمِ رَمَضَانَ وَحَجِّ الْبَيْتِ مَنْ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا }رواه مسلم

اسلام پرپنځوستنو ولاړ دی ،لومړی ددې خبرې ګواهي ورکول چې

پرته له الله تعالی څخه بل ذات دعبادت وړ نه دی.،دوهم په سمه توګه لمونځ ادا کول، دریم زکات ورکول ،څلورم روژه نیول اوپنځم داستطاعت په صورت کې دبیت الله حج کول.

## دریم اجماع:

دحج پرفرضیت اوثبوب باندې زمونږ ټول اسلامي امت اتفاق لري ،درسول الله صلی الله علیه وسلم له زماني رانیولې تر تبع تابعیو پورې زمونږ ټول فقهاء اومحدثین وربانديې قایل دي اوداهم منلې شوې اواتفاقي خبره چې څوک ورڅخه په قصدي توګه چې هيڅ ډول عذر ونه لري انکار وکړي کافر بلل کیږي.

په اسلام کې دحج مقام او ارزښت:

## دحج سبب:

الله تعالی دهر عبادت لپاره اسباب ټاکلي اودحج لپاره الله پاک بیت الله شریف مقرر کړی دی،ځکه چې دفرض اوعبادت اضافت داسبابو پرلور کیږي { حِجُّ الْبَيْتِ } له همدې امله حج په ټول عمر کې یوځل فرض دی ،ځکه چې سبب یې یو دی ،په دې اړه په حدیث شریف کې داسې راغلي دي: عَن ابْنِ عَبَّاس ، أَنَّ الأَقْرَعَ بْنَ حَابِس سَأَلَ النَّبِيَّ صلی الله علیه وسلم ، فَقَالَ : يَا رَسُولَ اللهِ , الْحَجُّ فِي كُلِّ عَامٍ ، أَوْ مَرَّةً وَاحِدَةً ؟ قَالَ : لاَ , بَلْ مَرَّةٌ , فَمَنْ زَادَ فَتَطَوُّعٌ. مصنف ابن ابي شيبة].

اقرع بن حابس له رسول الله نه پوښتنه وکړه چې ای د الله تعالی رسوله ! حج هر کال فرض دی اوکه په ټول عمر کې یوځل ؟ هغه صلی الله علیه وسلم په ځواب کې ورته وفرمایل چې نه یوځل فرض اوله دې زیات نفل دی.

## دحج د پرېښودلو ګناه:

حج پربندګانودالله تعالی حق دی،کوم مسلمان چې دالله تعالی ترکوره دتلو توان ولري پرهغه فرض ده چې دالله تعالی حق اداکړي اوکوم خلک چې دالله تعالی ترکوره دتلو توان لري خوبیاهم دالله تعالی حق نه اداکوي نوهغه دالله تعالی حق ادانکړ اوپرخپل ځان یې ظلم وکړ په دې اړه په حدیث شریف کې داسې راغلي دي:

عَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ مَلَكَ زَادًا وَرَاحِلَةً تُبَلِّغُهُ إِلَى بَيْتِ اللَّهِ وَلَمْ يَحُجَّ فَلاَ عَلَيْهِ أَنْ يَمُوتَ يَهُودِيًّا أَوْ نَصْرَانِيًّا وَذَلِكَ أَنَّ اللَّهَ يَقُولُ فِي كِتَابِهِ { وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنْ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلاً }رواه ترمذي

له علي کرم الله وجهه نه روایت دی دی وایې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي څوک دومره اندازه توښه او دسپرلۍ لپاره څاروی ولري چې دی دالله ترکوره یې رسوولای شي اوبیاحج ونکړي نوبرابره ده چې دی دیهودیت په حالت کې مړشي اویا دنصرانیت،ځکه چې الله تعالی فرمایلي دي :خاص دالله لپاره په خلکو دبیت الله حج فرض دي،په دې شرط چې ترهغه ځایه دتلو اوراتلو توان پکې موجود وي.

## حج هراړخیز عبادت دی:

په اسلام کې عبادات په درې ډوله دي:

لومړی:بدني عبادات لکه لمونځ اوداسې نور

دوهم:مالي عبادات لکه زکات اوداسې نور

دریم:بدني اومالي عبادات

په ټولو عباداتوکې دحج ځانګړتیاداده چې حج بدني اومالي عباداتوته ورشامل عبادت دي بلکې حج ټولو عباداتوباندې مشتمل اوهر اړخیز عبادت دی

## دحج ځانګړتیا:

د حج ستره ځانګړتیا داده چې حج د اسلامي امت په وړاندې د مسئولیت

احساس را ژوندی کوي، د امت د یوالي روحیه غبنتلې کوي، د دغه عقیدې لرونکو نه یو نړیوال ځواک جوړوي او د هر ډول خلقي او یا کسبي توپیرونو نه پورته ټول د یو رب په وړاندې د یو امت د غړیو په توګه دروي. همدا د اسلام تر ټولو ستره ځانګړتیا ده چې د ژوندانه ټول اړخونه یې په ډیره کلکه توګه یو له بل سره تړلي دي.

**دحج فضیلت:**

عَنْ جَابِر قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحَجُّ الْمَبْرُورُ لَيْسَ لَهُ جَزَاءٌ إِلَّا الْجَنَّةَ قَالُوا يَا نَبِيَّ اللَّهِ مَا الْحَجُّ الْمَبْرُورُ قَالَ إِطْعَامُ الطَّعَامِ وَإِفْشَاءُ السَّلَامِ رواه احمد.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:دحج مبرورلپاره پرته له جنت څخه بله بدله نشته،اصحابوکرامو وویل ای دالله نبي حج مبرورڅه شی دی،رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته په ځواب کې وفرمایل حج مبروردادی چې مستحقوخلکوته پکې خواړه ورکړل شی اوپه نوروباندې زیات سلامونه اچول.

عَنْ جَابِر ، رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : هَذَا الْبَيْتُ دِعَامَةُ الإِسْلاَمِ ، مَنْ خَرَجَ يَؤُمُّ هَذَا الْبَيْتَ مِنْ حَاجٍّ ، أَوْ مُعْتَمِرٍ ، أَوْ زَائِرٍ ، كَانَ مَضْمُونًا عَلَى اللَّهِ ، عَزَّ وَجلَّ ، إِنْ قَبَضَهُ أَنْ يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ ، وَإِنْ رَدَّهُ رَدَّهُ بِغَنِيمَةٍ ، وَأَجْرٍ ، ورواه الطبراني في الأوسط .

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:داکور داسلام ستن ده،څوک چې راووځي اوپه نیت کې همداکور وي دحج لپاره اویادعمرې لپاره اویادزیات لپاره نوالله تعالی ضمانت کړی دی چې که داسړی وفات شو نو جنت به یې دننه کوي اوکه ژوندی یې بېرته کورته راستون کړنو له اجراوغنیمت سره به یې راستون کړي.

عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبَّادٍ ؛ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم ، قَالَ : النَّفَقَةُ فِي الْحَجِّ كَالنَّفَقَةِ فِي سَبِيلِ اللهِ ، الدِّرْهَمُ بِسَبْعِ مِئَةٍ.مصنف ابن ابي شيبة

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي په حج مالي لګښت داسې دی لکه دالله په لارکې لګښت ،چې یودرهم پکې او سوه جنده کیږي.

**ضروري احکام:**

لومړی دحج دفرضیت شرطونه:
زمونږ دفقهي په کتابونوکې راغلي دي چې دحج دفرضوالي لپاره دالله تعالی له لوري څه شرطونه ټاکل شوی دي،که دا دشرطونه په چاکې پوره شول نو حج ورباندې فرض دی اوکه داشرطونه پوره نه شول نو بیا حج فرض نه دی چې تفصیل یې په لاندې ډول دی

دفرضیت او دوجوب شرطونه:
لومړی:د فرضیت دشرطونوڅخه ترټولو لومړی شرط اسلام اومسلمان کیدل دي په غیرمسلمان باندې حج فرض نه دی،ترټولو دمخه باید انسان په اسلام کې داخل شي بیاله دې وروسته پرې نوراحکام فرض کیږي.

دوهم:دحج دفرضیت لپاره دوهم شرط عقل دی،په لیوني باندې حج فرض نه دی.

دریم: دحج دوجوب لپاره دریم شرط بلوغ دی پرنابالغ باندې حج فرض نه دی،که چېرې غیربالغ مسلمان حج وکړي حج یې دروست دی خوحج یې نفلي دي له فرضوڅخه نه ورته حاسبیږي ،کله چې بلوغ ته ورسیده اوشرایط ورته برابر وه نوبیابه له سره حج کوي
څلورم:حریت دی په غلام انسان باندې حج فرض نه دی.

پنځم:توان درلودل،حج کونکی باید شتمن وي اودومره مال باید ورسره چې له خپلو اصلي اړتیاوڅو زیات دومره ورسره چې دده د تګ اوراتګ لپاره بسوالی وکړي.



دحـــج داداکولـــو شرطونـــــه: لـــومړی: دبـــدن روغتیا،پـــه گـــوډ ړانده،مریض اوداسې نورو باندې د حج ادا فرض نه دی البته که نفلي حج کـوي نوباک نلري.

دوهـم: داچې حـج کـونکې دکوم حاکم له پلوه په بندیخانه کې نه وي اوله هغه خطرڅخه په امن وي،کـه داسې نـه وي نوبیا دحج ادا ورباندې فرض نه دی.

دریم: داچې باید دتگ اوراتگ لاره کې امن وي،څـه جنگونه،غله،ځناوراوداسې نورشیان په لاره کې نه وي اوکـه چرتـه دلارې امن نه وي نوبیاهم حج وربانـدې فرض نه دی.

څلـورم:داچې کـه حـج کـونکې ښځینه وي نو ددې لپاره داشرط دی چې باید خپل خاونـد ورسره پـه سـفرکې مـل وي اویا خپل اصلي اودایمې محـرم ،کـه داسې نه وي نوښځه ځانته نشي کـولای چې حج ته ولاړه شي.

پنځم: شرط دادی که حج کـونکې ښځه وي باید دمیړه دوفات په موده کې اویاد طلاقوپه عـدت کـې نـه وي اوکـه چرته داسې وي نوبیا پرښځه باندې دحج ادا فرض نه دی.

**دصحت شرطونه:**

دحـج دصـحت شرطونـه پـه لانـدې ډول دي:

اول:احرام تړل.

دوهم: داچې حـج پـه ټاکـل شـوي وخت کې ترسره شي ،چې دالله تعالی لـه لـورې ورتـه ټاکـل شـوی دی،چې هغـه دحج درې میاشتې دي.

دریم: داچې حاجي دحج پـه جریـان کې له داسې کارونو څخه ځان وژغوري چې حج ورباندې فاسدیږي.

دحج ارکان:

اول: په عرفات باندې ودریـدل کـه څه هم دیوڅو لحظولپاره وي

دوهـم: دحـج دوهـم رکـن طـواف زیارت دی چې څلور لـومړني گردشـونه پکې فرض دي پاتې نوریې واجب دي.

پورتني فرضونه باید په خپلوټاکلو ځایونو، ټاکلو میاشـتو اوټـاکلي ترتیـب سره ترسره شي.

دحج واجبات:

دحج پـه احکـاموکې نسبت نـورو احکـامو تـه واجبـات زیـات دي چـې مشهور یې په لاندې ډول دي:

اول: پـه مزدلفـه کـې وقـوف او ودریدل که څه هـم یـوه لحظـه اوشېبه وي.

دوهم:دصفا اومروا ترمنځ سعي او طواف کول دي.

دریم: دجمرو ویشتل داختر په ورځ اوپه همدې توگه په پاتې نورو ورځوکې چې ایام تشریق نومیږي.

څلورم: طواف صدر( الوداع) البتـه دا دهغه چالپاره چې دمکې اوسیدونکی نه وي.

پنځم:سرکلول اویایې لندول په خپل ټاکلي وخت کې.

شپږم:له میقـات څخـه احـرام تـړل.
اوم: دحـج پـه جریـان کـې دمـخ اوسر

لوځول،البته داحکم دنارینه لپاره دی اوښځه به یوازې مخ لوڅ ساتي.

اتم: حاجي به ګنډل شوې جامې به نه اغوندي البته داحکم دنارینه په هکله دی.

## په حج کې سنت کارونه اوعملونه په لاندې ډول دي:

اول:طواف قدوم دی چې طواف قادم،طواف الورود،طواف التحیة او طواف الوارد هم ورته ویل کیږي،چې دا طواف تر غیر مکې پورې خاص دی.
دوهم: دامام خطبه،چې په دریو ځایونو کې سنت ده ،داخطبه داختر او دجمعې دخطبې په څېر نه دی بلکې یوه خطبه ده،چې وخت یې دماسپښین له لمانځه څخه وروسته دی،البته دعرفات خطبه له لمانځه څخه مخکې ده اوله زوال څخه وروسته.

دخطبې پیل به امام له تلبیې ویلو څخه کوي که امام پخپله هم حاجي وه اوکه نه په تکبیر سره به یې پیل کوي.

لومړی: خطبه:

داخطبه به د ذي الحجې په اومه ورځ په مکه مکرمه کې وړاندې کیږي،چې موخه یې د حج داحکامو اومناسکو ورښودنه ده ،په دې اړه په حدیث شریف کې داسې راغلي دي:

: عَن ابْن عُمَرَ رَضيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ : " كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ قَبْلَ التَّرْوِيَةِ بِيَوْمٍ خَطَبَ النَّاسَ فَأَخْبَرَهُمْ بِمَنَاسِكِهِمْ ".

دوهمه: خطبه د عرفې په ورځ په عرفات کې مخکې د ماسپښین له لمانځه څخه ده.

داخطبه دجمعې دخطبې په څېر دوه خطبې دي،چې امام به پکې دحج پاتې مسائل او حکمونه بیانوي اوحاجیان به په ډیرو دعاګانو اوزاریو باندې ورتیزوي.

دریمه خطبه به په یولسم د ذې الحجې په منی کې وړاندې کیږي چې امام به دخلکو سوالونو ته ځوابونه ورکوي.

دریم:سنت :دعرفې په شپه په منی کې شپه تیرول دي.

طریقه یې داده چې په امه ورځ به حاجیان له مکې څخه منی ته روانیږي او هلته به پنځه لمونځونه کوي اوبیا دعرفې په ورځ عرفات ته روانیږي ،په دې هکله په حدیث شریف کې داسې راغلي دي چې راوي یې جابر رضي الله عنه دی:

: " فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ التَّرْوِيَةِ تَوَجَّهُوا إِلَى مِنًى فَأَهَلُّوا بِالْحَجِّ ، وَرَكِبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى بِهِمُ الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ وَالْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ وَالْفَجْرَ ، ثُمَّ مَكَثَ قَلِيلا حَتَّى طَلَعَتِ الشَّمْسُ وَأَمَرَ بِقُبَّةٍ مِنْ شَعْرٍ تُضْرَبُ لَهُ بِنَمِرَةَ "

جابربن عبدالله رضي الله عنه وایي چې کله چې اتمه ورځ شوه نو هغوی دمینی په لور توجه وکړه او دحج لپاره یې احرام وتاړه، اورسول الله صلی الله علیه وسلم په سپرلۍ باندې سپور شو نو دماسپپین، ماذدیګر،ماښام،ماسختن اوسهار لمونځونه یې هلته ورته ادا کول،بیایې لږ مکث وکړ تر دې چې لمر راپورته

څلورم:له منی نه عرفات ته تګ کول:

دعرفې په ورځ کله چې لمر راپورته شي په دغه وخت کې عرفات ته تلل مسنون عمل دی.

پنځم: داختر په شپه په مزدلفه کې شپه تېرول دی.

دحاجي لپاره داسنت طریقه ده چې داختر په شپه به په مزدلفه کې شپه تیروي تردې چې سبا شي بیابه له مشعر حرام سره دعا کوي تر دې چې ښه رڼا شي بیا به له دې وروسته منی ته راشي.
اوم: د وادي محصب له لارې او یاهم



دابطح له لارې مکې مکرمې تـه راتـگ کول سنت دي

**دحج مستحبات:**

په حج کې مستحبات هم زيات دي چــې ځينــې يــې پــه لانــدې ډول دي:

اول: په تلبيه ويلو کې آواز پورتـه يعنـي په لوړ اواز سره تلبيه ويل.

دوهم: نفلي قرباني کول دي

په دې هکله په حديث شريـف کـې داسې راغلي دي :يوه سړي پوښتنه وکړه چې کوم حج غوره دی؟رسو ل الله ورتـه وويل چې پـه لـوړ اواز سره تلبيـه ويـل اونفلي قرباني کول) .

دريم: کله چـې حاجي مکـې تـه داخليږي په دغه وخت کـې غسـل کـول مستحب دی

څلـورم: پـه مزدلفـه کـې لـه نيمـې شپې څخه وروسته غسل کول دی.

پنځم: په طواف زيارت کـې عجلـه او تلوار کول دي

شپږم: په دعاگانو،اذکارو او تلبيـه ويلو کې زياتوالی کول دي

**دحج اقسام او ډولونه:**

په اسلام کې حج په درې ډولـه دی چې تفصيل يې په لاندې ډول ديک

اول- افراد:

دهغه ډول حج دی چې يواځې دحج نيت پکې وکړل شي.

دوهم: حج تمتع:

دا هغــه ډول حــج دی چـــې اول دعمرې نيت وتړل شي کله چې عمره پای ته ورسيږي او لـه عمرې څخه حاجي ځان حلال کړي ،بيا کلـه چـې مينـی تـه روانيږي نـو دحـج نيـت وکـړي اواحـرام وتړي.

دريم: قران:

داهغــه ډول حــج دی چــې دعمــرې اوحـج دواړو لپاره يوځـل احـرام وتـړي اوترهغه به ځان نه حلالوي تر څويې چې ټول مراسم نه وي ترسره کړي.

احرام:

احرام دحـج نيـت کولـو،دحج لپاره ځانگړوجـــامو اغوســـتلو اوتلبيــــه لوســـتلوڅخه عبـارت دی ،لــه تلبيــې ويلووروسته سړی دحج پـه احـرام کـې داخليـــږي لکــــه څرنگــــه چــــې پــــه تکبيرتحريمه سره لمونځ کونکی په لمانځه کې داخليږی ،کله چـې سـړی پـه لمانځـه کې داخـل شي نـو ډيرمبـاح شـيان پـرې حراميـږي اولمـونځ پـرې فاسـديږي ،لـه همدې امله ورته تکبير تحريمـه واي پـه همدې توگه کله چې حاجې احرام وتـړي ډير روا اومباح شيان ورباندې حراميږي ،نوځکه احرام ته احرام ويل کيږي

**داحرام مسايل:**

لومړی:داحرام لپـاره ترتړولـو دمخـه غسل کول موکد سنت دی

دوهم:لـه لمبلوڅخـه دمخـه دسر د ويښتانو اونورو شـيانو برابـرول، نوکـان پريکول اوله غسـل نـه وروسـته سـپين څادر اولنگ اغوستل اوخوشبويې لگول غوره اومستحب کار دی.له احرام تړلـو وروسته دوه رکعته لونځ کول

میقات ته تررسیدو دمخه هم احرام تړل روا کار دی خوکله چې حاجي میقات ته ورسیږي نوله میقات څخه پرته له احرام تړلو څخه حرم ته ننوتل جواز نلري که څه هم دبل مقصد لپاره تللی وي.

## داحرام د تړلو طریقه:

کله چې حاجي داحرام تړلو اراده وکړي نو ویښتان،نوکان اونورشیان دې ښه برابرکړي ،بیادې غسل وکړي ،خوشبویي دې ولګوي ،داحرام جامې دې واغوندي ،بیابه دوه رکعته لمونځ وکړي ،له تلبې ویلو سره به حج یادعمرې نیت وکړي کله یې چې تلبیه وویله نو حاجي محرم شو.

هغه کارونه چې داحرام تړلو څخه وروسته ممنوع دي:

هغه کارونه چې په حج کې منع دي په درې ډوله دي:

## اول: دحج مفسدات:

حج هلته فاسیدیږي چې دحج له ارکانو او شرائطو څخه کوم رکن او یا شرط فوت شي.

## دوهم: مکروهات:

په حج کې مکروهات په ترک دسنتو سره رامنځ ته کیږي کله چې حاجي کوم سنت عمل ترک کړي نو په دې سره په حج کې مکروهات رامنځ ته کیږي.

## دریم: محرمات:

په حج کې حرام د واجباتو په ترک



سره رامنځ ته کیږي اوپه مقابل کې یې دم لازمیږي.

په دې کارونوکې ځینې هغه کړنې دي چې په هرحالت کې ممنوعې دي خوداحرام په حالت کې دهغو حرمت نورهم کلک شي ،البته ځینې بیاداسې کارونه دي چې داحرام له حالت څخه پرته هغه روا اومباح کارونه دي خو داحرام له کبله په سړي باندې حرامیږي اوکله چې له احرام څخه فاغ شي نوبیا بېرته ورته رواکیږي ،چې تفصیل یې په لاندې توګه دی:

لومړی : له خپلې مېرمنې سره دجماع اویوځای والي خبرې اترې نکوي،اونه به فسق اوجدال کوي.

دوهم: دوچې ښکاربه نکوي .

دریم:ګنډل شوې جامې لکه پرتوګ قمیس،واسکټ اوداسې نوربه نه اغوندي .

څلورم: دخوشبویې له استعمال څخه به ډډه کوي،په حدیث شریف راغلي دي:

عَن ابْنِ عُمَرَ ، قَالَ : أَقْبَلْنَا مَعَ عُمَرَ حَتَّى إِذَا كُنَّا بِذِي الْحُلَيْفَةِ أَهَلَّ وَأَهْلَلْنَا ، فَمَرَّ بِنَا رَاكِبٌ يَنْفَحُ مِنْهُ رِيحُ الطِّيبِ ، فَقَالَ عُمَرُ : مَنْ هَذَا ؟ قَالُوا : مُعَاوِيَةُ فَقَالَ : مَا هَذَا يَا مُعَاوِيَةُ ؟ قَالَ : مَرَرْتُ بِأُمِّ حَبِيبَةَ بِنْتِ أَبِي سُفْيَانَ فَفَعَلَتْ بِي هَذَا ، قَالَ : ارْجِعْ فَاغْسِلْهُ عَنْكَ ، فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم ، يَقُولُ : الْحَاجُّ الشَّعِثُ التَّفِلُ.مسند البزار.

پنځم: محرم به له سرکلولو او د ږیرې له لنډولو اوکلولو څخه ډډه کوي:په قرانکریم کې راغلي دي: وَلاَ تَحْلِقُواْ رُؤُوسَكُمْ حَتَّى يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ

اوم: محرم به له نوکانو پریکولو څخه ډډه کوي:

اتم: محرم به تیل نه استعمالوي اوداسې نور.

# امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللَّهُ د محدث په توګه!

ابو معاویه/ تعلیم الاسلام ویب پاڼه



امام ابوحنیفه رحمة الله علیه لوی محدث وو، ځیني هغه د احادیثو دعلم تکړه او نړۍ وال علماء کرام، چي نومونه ئې تر اوسه پوري پاته دي او د امام ابوحنیفه رحمة الله علیه د درس په حلقه کي شامل وه په لاندي ډول دي:

۱ -امام یحیی ابن سعید القطان رحمة الله علیه ، چي د علم جرح او تعدیل بنسټ اېښوونکی او امام دی.

۲ -امام عبدالرزاق بن همام، چي د احادیثو کتاب ئې په (مصنف) سره مشهور دی، امام بخاري رحمة الله علیه دده د کتاب (جامع کبیر) څخه فیض اخیستی دی.

۳ -امام یزید بن هارون رحمة الله علیه ، چي د امام احمد بن حنبل رحمة الله علیه استاذ دی.

۴ -امام وکیع بن جراح رحمة الله علیه ، امام احمد رحمة الله علیه دده په هکله وایي: د احادیثو په حفظ ، اسناد او روایت کي دده مثال نسته.

۵ -امام عبدالله بن مبارک رحمة الله علیه ، چي په اتفاق سره په علم الحدیث کي امیر المؤمنین دی.

۶ -امام یحیی بن زکریا بن ابی زائده رحمة الله علیه ، چي د امام بخاري رحمة الله علیه د استاذ (علي بن المدیني رحمة الله علیه ) استاذ دی.

۷ -قاضي امام ابویوسف رحمة الله علیه ، چي امام احمد رحمة الله علیه دده په هکله فرمایي: کله چي مي د علم حدیث زده کړه شروع کړه؛ نو تر ټولو لومړی زه د قاضي امام ابویوسف رحمة الله علیه په مجلس کي کېنښناستم.

۸ -امام محمد بن حسن الشیباني رحمة الله علیه ، دده په هکله حضرت امام شافعي رحمة الله علیه فرمایي: ما له ده څخه د یوه اوښ د وزن په اندازه علم زده کړ.

حافظ ابن حجر عسقلاني رحمة الله علیه پخپل کتاب (تهذیب التهذیب ټوک: ۱، ص:۴۴۹) کي د حضرت امام اعظم رحمة الله علیه د شاګردانو په فهرست کي لاندي مشهوره دعلم الحدیث امامان ذکر کوي :

) وعنه ابنه حماد و إبراهیم بن طهمان وحمزة بن حبیب الزیات وزفر بن الهذیل وأبو یوسف القاضي وأبو یحیی الحماني وعیسی بن یونس و وکیع ویزید بن زریع وأسد بن عمرو البجلي وحکام بن یعلی بن سلم الرازي وخارجة بن مصعب وعبد المجید بن أبي رواد وعلي بن مسهر ومحمد بن بشر العبدي وعبد الرزاق ومحمد بن الحسن الشیباني ومصعب بن المقدام ویحیی بن یمان وأبو عصمة نوح بن أبي مریم وأبو عبد الرحمن المقري وأبو عاصم وآخرون( .

سید الحفاظ امام یحیی ابن معین رحمة الله علیه (متوفی ۲۳۳ هـ ق) د حضرت امام ابوحنیفه رحمة الله علیه په هکله لیکي: دی مشهوره بزرګ، محدث او په فن الرجال کي ډېر لوړ عالم وو، هغه په احادیثو کي ثقه دی، هیچا هم دده تضعیف نه دی بیان کړی او ماته د حمزه رحمة الله علیه قرآئت او د امام ابوحنیفه رحمة الله علیه فقه ډېره خوښه ده.

د امـام صـاحب رحمـة الله علیـه استاذان:

۱ -حضرت امام ابوحنیفه رحمة الله علیه د حضرت عامر بـن شراحیـل رحمـة الله علیـه ځخـه علـم حـدیث زده کـړ او حضـرت عـامر بـن شراحیـل رحمـة الله علیه د (۵۰۰) صحابه کرامـو رضـی الله عنهم څخه علم حدیث حاصل کړی وو.

۲ -د امام ابوحنیفه رحمة الله علیـه بل استاذ حضرت حماد بن سـلیمان رحمـة الله علیـه وو، چـې پـه اتفـاق سره د علـم حدیث او علم فقه امام دی.

۳ -د امـام صـاحب دریـیم اسـتاذ ابواسـحاق سـبیعی رحمـة الله علیـه وو، چـې تـر (۴۰) د اضـافه صـحابه کرامـو رضی الله عنهم څخه ئې علم حاصل کړی وو.

# خاصې ورځې طنز

زموږ عامې ورځې چې پر ولس هر ډول تېرېږي، تېرېږي بـه. خاصې ورځـې بیـا خاصـې وي، رنـګ او بڼـه یـې بدلـه وي، د چارواکیو په لاپو شاپو او غوړو خبرو بدرګه کېږي او همدا یې مالګه او مرچ وي. د جهاد د برې په ویاړ په غونډو کې، هغوی چې پر «جهاد» معتقد هم نه دي د جهاد او مجاهد پر ستاینو خولې شړیوي. اوس هـم پـه جهـاد بوخـت یـو...، دا بـه پرېـږدو چـې د پردیو پر مټ له خپلو سره د مرګونو په لوبه کیوتي یو دا به څومره د جهاد په تعریف کې راځي، سبا ته به د تـاریخ قضـاوت څـه وي، د مرغومې پر شپږمه، د پردیو پوځونو تر سیوري لاندې د پردیو یرغل غندو، او د سلواغې پر ۱۶مه یې هماغسې د ماتې او رسوایۍ رجزونه تکراروو.

نن د کارګر نړیواله ورځ ده، د کار او ټولنیزو چارو وزارت چارواکي ادعا کوي چې په هېواد کې ۶ سلنه وزګارتیا کمه شوې!

دا نو د ارقامو لوبه ده، انتر منتر چوف! وزګارتیا کمه شوې واه واه! خو پر دې یې څوك فکر کوي چې دغه سلنه پـرون څـو وه چې نن شپږ سلنه را ټیټه شوې، بیا دا څوك پوښتي چې وزګار ځوانان دې د سوریې او یمن جګړو ته تللي، کـه د یونـان پـه اوبو کې ډوب شول، که د اروپایي هېوادونو د کډوالو په کمپونو کې وراسته شول؟ هغه بل کورنی اړخ یې تر دې هم ځوروونکی، چې څومره یې په پوډرو بوخت دي چې نور د کارموندنې له خیاله تېر دي، څومره دې دواړو اړخونو ته د جګړې لیکو ته لاړل !!

دا هره ورځ چې د جګړو وژل شوي شمېرو څوك دي!!

ما ته په پاکستان کې د هجرت وختونه را یاد شي، هغه مهال چې بې نظیر بوټو صدراعظمه وه، زموږ د خلقیانو پـه څېـر د دوی شعار هم کور، کالي، ډوډۍ ؤ، د بې وزلۍ ( غربت) د ختمولو شعار د بې نظیرې تکیـه کـلام ؤ. یـوه لیکـوال د دې پـر دغـه تکیه کلام ولیکل چې بې نظیر بوټو غربت (بې وزلي) نه بلکې غریبان ختموي.

زموږ د یارانو پر دغه ادعا چې بېکاري او وزګارتیا شپږ سلنه را ټیټه شوې، همدغه خبره صدق کوي چـې اصلاً لـه وزګـارو ځوانانو څخه شپږ سلنه نور د کار او روزګار د غوښتنې له کتاره لوېدلي دي. دا چې څومره یـې د مـدیترانې سـمندرګې د کبـانو خوراك دي، څومره یې د نېشې او جګړې بدمرغې نړۍ ته لویدلي او څومره په سوریه کې،.... دا حسـاب کتـاب ډېـر ګـران دی، خو په خاصو ورځو کې د یـارانو قلقلـې، لاپـې، غـوړې ژمنـې او رجزونـه هماغسـې تـاوده روان دي، آن لا دا چـې څـومره د ولس رنځونه، محرومیتونه او نهیلۍ زیاتېږي په هماغه کچه د یارانو کش او فش، د موټرو کتارونه، لاپې او قلقلـې زور اخلـي، غـواړي معنوي تشه په مادي ځلبل کې پټه کړي. څومره چې عام ولس له ژونده نهیلی کېږي، هـومره مـو پـه ارقـامو کـې د یـوې جنتـې نړۍ تصویرونه زیات ځلېږي.... د دې کاذب چاپېریال پایله به څه وي؟ په ځواب یې هم شونډې سوځي او هم قلمونه!!



# مجاهدينو ورونو!

جمال الدين اديب

ورونو !

يو درد مې درته راوړی..غمژن يم..داسې درد دی چې د ويلو لپاره يې الفاظ نه لرم..لکه عينِ درد، چې حس کيږي، خو بريښي نه..کوښښ کوم، چې عبارتونه پيدا کړم او د زړه تنهاکې درته شيندلو تورو کې انځور کړم..

ګوره که وتوانيږم..منم چې سختې موضوع ته مې قلم مجبور کړی، مګر بې صبره زړه مې د عقل او حساب معادلې شاته غورځولي ..ملګرو !خبره درته کوم، خو توجه مو غواړم..

دې وخت کې مو که څه مصروفيت وي، اوس يې پريږدئ، چې فارغ شوئ، خبرې ته مې غوږ شئ..که خامخا خبره اورئ نو اوس مو که هر څومره غټ غم روان کړی وي، يو څو دقيقو ته يې له اوږو کوز کړئ..ذهن مو ما ته فارغ کړئ..کيسه مې په خلاصو غوږونو او پراخه تندي واورئ

..قدرمنو !جهاد د چا د عقل فلسفه نه ده..جهاد د شريعت امر دی..د خپل ذات د ګټلو او کينې سړولو لار نه ده، بلکې د عادلانه نظام د قايمولو وسيله ده..جهاد د فساد او بې امنۍ د ختمولو لار ده..جهاد د يرغل د دفع کولو حکم دی..جهاد د اسلامي دعوت مخې ته پراته خنډونه نړوي..جهاد د اسلامي امت د بقاء راز دی..جهاد د جاهلي فکرونو ځپل دي..جهاد د مسلمانو پرګنو د خوشحالۍ باعث دی

..عزتمنو !ځينو ورونو هېره کړې، چې موږ د يوه جاهلي نظام پر ضد راپورته شوي يو..دعوی مو دا ده، چې اسلامي نظام حاکموو..عدل او امن راولو..خوشحالي او سوکالي راولو..درځئ ګرېوانونو ته سر ښکته کړو، چې موږ د خپلې دعوی ثابتولو باندې ترکومه حده توانېدلي يو؟ داسې خو به نه وي، چې الله مکړه ځينوملګرود جهاد له لار ي کجروي کړي وي او د خپل ذات پر لار روان شوي وي؟

مسلمانان يوازې په مادي پرمختګ نه خوشحاليږي..اصل خوشحالي يې دا ده، چې زموږ تر واکمنۍ لاندې يې څلورويشت ساعته د شريعت سيوري لاندې تيره شي..عدالت تامين شي.. امن راشي..مسلمانان په ازاد ډول پينځه وخته لمونځ په جماعت سره جومات کې اداء کړي ..د مظلوم اواز د هر ظالم مقابل کې واورېدل شي..د جهاد د کونډو، يتيمانو، بورو او ورارو په وخت پوښتنه وشي.. بډای مسلمانان د غريبو مسلمانانو مرستې

نه؛ زموږ خوښه وي، که نه، شریعت به پلی کوو. دغه اراده او دغه هوډ به مو د اسلامي نظام حاکمولو استعداد لوړوي.

توریالیو !له دغې ارادې وروسته یو فکر په کار دی چې په یوازې ځان څه کیږي؟ هر سړی دې فکر وکړي، چې یوازې خپل کور په یوازې ځان اداره کیږي؟ نو یوه سیمه، یوه ولسوالي، یو ولایت او یو هېواد څنګه په یوازې ځان اداره کېدای شي؟ دغه فکر به اخلو او ځان به د بل مجاهد په منلو مجبوروو. د بل مجاهد په مینه به یې مجبوروو.



لاس په لاس به سره ځو او د شریعت د هر دښمن مقابله به اوږه په اوږه کوو .اسلامي وروروولي د ټینګ اسلامي نظام زړی دی. کله چې اسلامي وروروولي نه وه، نو لکه د تېرو مجاهدینو غونډې به ګټلې افغانستان رانه بل څوک نیسي. په ګټلي کور کې به یو بل نه ګټه غواړو. وطن به وران وي، دین به معطل وي، شریعت به پایمال وي، نظام به ړنګ وي، امن پسې به خلک ړندیږي، سوکالي به مړژوانـدې هیلـه وي او خوشـحالي بـه د زړو ابیـو نکل...خدای دې نه کړي

.درد درواخلئ..درځئ د نظام په معنی ځان پوه کړو..عدل، امن، د مسلمانانو خوشحالي او سوکالي د خپلو هڅو نتیجه وګڼو او په بې صبری یې تر لاسه کړو..د مسلمانو پلرونو، میندو، ژړیو، پېغلو، کونډو، یتیمانو، بورو او ورارو پر شونډو د مُسکا اختر ووینو ..د دغه اختر رنګ ووینو..خوند یې وڅکو...سرِ وخت دی..فیصله زموږ لاس کې ده...ځان د تاریخ زرینو پاڼو کې ثبت کړو.. د خدای په امان

ته وهڅول شي...مسلمانان په خپل مال او ناموس مطمین شي.

.پتمنو !که پینځه وخته جماعتونه یوازې دوه وخته وي.. او شریعت هغه وخت پلی وي، چې زموږ په کې ګټه وي..عدل سر خوړلی وي..څوک چې څومره کمزوری وي، هغومره ډېر مظلوم وي..کونډې، یتیمان، بورې او ورارې ویر ته یوازې پاتې وي..غریب له ولږې ځان وژني او بډای په یوه وخت د یوه غریب د میاشتې لګښت لري...او لږ بې پرې بډای له مخې زموږ له ساحو تښتي..نو دا به هغه ورځ نه وي، چې مسلمانان یې پینځه وخته لمانځه کې غواړي .. ننګیالیو !هېره مو ده، چې موږ جاهلي نظام نړوو او پر ځای یې اسلامي نظام حاکموو؟ اسلامي نظام څه معنی؟ په لنډو ټکو چې : د انسانانو د دین او دنیا چاره په اسلامي شریعت اداره کړي.

د دین او دنیا چارې په اسلامي شریعت ورځ تر بلې په مخ ولاړې شي. د دین او دنیا چارې ورځ تر بلې اصلاح شي . د اسلامي نظام معنی دا نه ده، چې د جهاد ناره پورته کړو او بیا د خپلې خوښې واک وچلوو. ؛ که موږ دغسې وو.



# اسلامي امارت زندانیانو سره

# ناوړه چلند غندلی

د اسلامي امارت ویاند رسنیو ته یوه اعلامیه لیږلې ده هغه د حکومت چلند له بندیانو سره غندلی دی او ویلي یې دي چې حکومت له تیرو پنځلس کلونو راهیسې له بندیانو سره ناوړه چلند کوي خو په دې وروستیو کې یې د باګرام او پل چرخي او کندهار زندان کړنې د هر قانون خلاف بللي او یو څو شیان یې ښودلي چې په لاندې ډول دي.

۱ ـ بندیانو ته یې زموږ د اسلام او عرف خلاف سور رنګه جامې راوړې چې له تنګ پتلون او لنډ کمیس نه عبارت دي او لمن نه لري، دې نامناسبو جامو بندیانو ته په ناسته، ولاړه، لمانځه او نورو حرکاتو کې جدي مشکل جوړ کړی، دا هغه لباس دی چې په لومړي سرکې هم د امریکایانو لخوا په بګرام او ګوانتانامو کې بندیانو ته په زور ور اغوستل کیده .

۲ ـ د بندیانو له کورنیو سره یې ملاقاتونه بند کړي، او یا هم په څو میاشتې اوږد ځنډ ملاقات کیږي، هغه هم د شیشې شاته فقط شل دقیقې بندیان له خپلو خپلوانو سره خبرې کولای شي چې دواړو خواوته یې روحي تکلیف ایجاد کړی دی .

۳ ـ خوراک یې په نهایي اندازه کم او خراب دی، نه یې غوړ سم وي، نه یې رنګ سم وي، نه یې اندازه کافي وي نه یې نور کیفیت.

۴ ـ د خوراک د خرابۍ له امله ګڼو بندیانو ته د معدې او نس مریضۍ پیدا شوي حتی ځینې بندیان یې ځان وژنې ته تیار کړي دي .

۵ ـ مریضانو ته هیڅ رسیدګي نشته، سم ډاکټر او دوا نشته، له بیا بیا شکایت او اصرار سره سره هم د مریضانو په حال کې بهبود نه دی راغلی، د زندان ځینې مسئولین اعتراف کوي چې د بندیانو حق په رشوتونو کې یو بل ته ورکول کیږي، دوا او نور لوازم یې فاسد چارواکي ګرځوي، خراب کیفیت دوا او طبي شیان وروړي چې هیڅ تأثیر نلري مریضۍ دوامداره او مزمنې شوې او بندیان یې له کړاو سره مخ کړي .

۶ ـ د سپورت او صفایي په برخه کې یې هم مشکلات شته او د پخوا په پرتله یې په ځنډ او خنډ سره اجازه ورکول کیږي .

۷ ـ د عسکرو برخورد له ټولو بندیانو سره ډیر ستوغ او غیر انساني دی، سپکې خبرې کوي، ښکنځل کوي، بندیانو ته د خوب په وخت کې شور جوړوي، د تلاوت او عبادت په وخت کې مزاحمت جوړوي او قصدا یې د بندیانو په عذابول پیل کړي .

۸ ـ د کتابونو او مطالعې په برخه کې یې هم محدودیتونه وضع کړي، د اړتیا وړ کتاب ته اجازه نه ورکوي چې وروړل شي او په لوی لاس هڅه کیږي چې د بندیانو د سالم مصروفیت مخه ونیول شي او شور او غوغا ته لاره هواره شي .

اسلامي امارت د اشغالګرو او د هغوی د مزدورانو لخوا له بندیانو سره ناوړه چلند په کلکه غندي او په دې اړوند د نړیوالو حقوقي او بشري ادارو او رسنیو توجه په هیواد کې ټولو زندانونو خصوصا د بګرام بدنام زندان ته را اړوي، ترڅو هغوی د بشري عاطفې له مخې د بندیانو سره د بد چلند په اړه خپل مسئولیت ادا کړي او له خپل موقف څخه په استفاده یا د دغو ظلمونو مخه ونیسي او یا یې په اړه بې پرې او ازاد تحقیق وکړي، پایلې یې اعلان او د رسنیو په واک کې ورکړي.

ذبیح الله مجاهد اسلامي امارت ویندوی

۱۵/۱۰/۱۴۳۸هـق

۱۸/۴/۱۳۹۶هـ ش ـ ۹/۷/۲۰۱۷م



# روغتیا

## ویښته باید اوونۍ کې څو ځلي ووینځل شي؟

د هغوی په وینا د ویښتانو ښې روغتیا لپاره باید په دریو ورځو کې یو ځل ووینځل شي، یا لږ تر لږه درې ورځې پر ویښتانو شامپو استعمال نه شي.

ایا کله مو په ذهن کې دا پوښتنه پیدا شوې چې په اوونۍ کې څو ځلې باید خپل ویښته ووینځۍ؟

په امریکا کې ترسره شوې نوې څېړنې دغه پوښتنه ځوابه کړې.

د امریکا په کولمبیا پوهنتون کې ترسره شوې نوې روغتیایي څېړنې ثابته کړې چې د ویښتانو هره ورځ وینځل ناوړه اغېز لري او ویښته زیانمنوي.

دغې څېړنې کې ویل شوي چې څنګه چې څېره کې غوړ تولیږي او پوستکی له وچېدو ژغوري دغه عملیه په ویښتانو کې هم واقع کېږي.

په ویښتانو کې غوړ پیدا کوونکې غده سیبیم نومېږي او ویښتانو کې غوړ پیدا کولو سره ویښته لوند ساتي او له وچوالي څخه یې ژغوري.

د دغو غدو اندازه او شتون د هر انسان جینونو او هورمونونو پورې تړلې، چې په ځوانۍ کې یې اندازه زیاتېږي چې په پایله کې یې ویښته غوړ ښکاري او څېره کې د ځوانۍ دانې پیدا کېدو لامل ګرځي.

څېړنه کې ویل شوي، دا چې په اوونۍ کې ویښتان څو ځلي ووینځل شي د هر کس لپاره توپیر کوي خو دا څرګنده ده چې هره ورځ باید ونه وینځل شي.

څېړونکي وايي چې په ورځنۍ ډول د ویښتانو وینځل د ګټې پر ځای زیان لري، چې دغه زیان په نارینه کې د ښځو په پرتله ډېر زیات وي.

څېړونکي همداراز ویلي چې د ویښتانو وینځلو له امله د ویښتانو غوړ له منځه ځي، پوټکی وچېږي او د غوړ جوړولو عمل کمزوری کېږي.

**شکرې ناروغی او اضافي وزن څخه د مخنیوي اسانه او وړیا لاره**

شکرې ناروغي د نړۍ یوه له وژونکو ناروغیو څخه ده چې په کلني ډول د زرګونو ناروغانو ژوند اخلي او له اندازې زیاته د وزن زیاتېدل هم انسان په بې شمېره ناروغیو او روغتیایي ستونزو اخته کولای شي چې له همدې امله اوس د روغتیایي کارپوهانو له لوري معلولیت ګڼل کېږي.

روغتیایي څېړونکي او کارپوهان تل د دغو ناروغیو د مخنیوی لارې چارې لټوي. په دې وروستیو کې په انګلستان کې ترسره شوې څېړنې ثابته کړې چې د شپې لخوا د خپلې کوټې کړکۍ خلاصه پرېښودل انسان له اضافي وزن او شکرې ناروغۍ دواړو ډول څخه ژغورلای شي.

دغې څېړنې کې چې د انګلستان په اکسفورډ پوهنتون کې ترسره شوې ویل شوی چې د شپې لخوا کوټې ته راتلونکې سړه او تازه هوا روغتیا لپاره ډېرې ګټې لري.

څېړنې کې ویل شوي چې داسې شواهد موندل شوي چې د بدن تودوخه یوازې څو درجې ټیټېدل هم انسان له شکرې ناروغۍ او اضافي وزن څخه ژغورلای شي.

له دې وړاندې یوې جرمني څېړنې ثابته کړې وه چې د تودوخې یوازې یوه درجه اضافه کېدل هر کال یوازې په امریکا کې یو لک کسان د شکرې په ناروغۍ اخته کوي ځکه چې په چاپېریال کې بدلون له امله بدن د خپل ځان ګرم ساتلو لپاره لږه اندازه براون فیټ مصرفوي کوم چې د انسولین حساسیت او وزن زیاتوالی لامل ګرځي.

برتانوي څېړنې کې ویل شوي چې ځان یخ ساتل د شکرې او اضافي وزن خطر کموي ځکه چې د بدن ټیټه تودوخه د انسولین د حساسیت ستونزې مخه نیسي.

# ګلځونه

## ګرمو بسترو کې

#عبدالقدوس فاتح

جَنَّتْ د سپینـــو تورو په سایو کې پیدا کـیږي
ګُلانْ هـم د أزغیــو په منځـو کې پیدا کـیږي

هرڅوک کړي منډې تږې د هوســا ژوندون لپاره
راحــتْ د کـړاوونـو نتــیجو کـې پیدا کـیږي

د کلـي هــا بې ننګــه زندګـي ورتـه پیـغور ده
غازیـان د جنـګ ډګـر او سنګـرو کې پیدا کـیږي

د یـار د غېـو سترګو مینه کـړې بـه په چـا ماتـه
هوسۍ خو هم په دښتو اوځَنْګلُو کې پیدا کـیږي

مؤمنــه تـوره شـپه کښې تـر سهـاره رب تـه ژاړه
ښښنــه د الله ج پـه نیمـو شپــو کې پیدا کـیږي

چې ښـه ډیـره ګرمـي وي هـم د وورې أوږدي ورځــې
أخ خونـد د عبـادتْ دغـو رُوژُو کې پیدا کـیږي

په خوله شهــادتْ غـواړې ، د جهاد میدان نه ځې
دا کلــه د کـور ګــرمو بستـــرو کې پیدا کـیږي

ګیـږدۍ د غره لمن کښې او بـازان د غره په څوکه
ګُورګورې هـم پـه جګـو لوړو غرو کې پیدا کـیږي

کــه تنــده أدبــي او غزلیــزه ماتـوې پــرې
دا خـوند خـاص د فـاتح واړه شعرو کې پیدا کـیږي

## د اوښکو په تسبو

مسلم یار

پـام بـه کـوئ، دلتـه ګـلان هـم پـه اغـزو شماریږي
دلتـه چـې نـه وي سـړې هغـه پـه سـړو شـماریږي

پـه رڼـا ورځ وکـړي بمبـار تـرې تـوره شـپه جـوړه شي
دلتـه لـه ډېـره غمـه ورځـې هـم پـه شـپو شـماریږي

زه دا مـنم چـې د غمونـو شـمار بــه ونکـړي څـوک
خـو زمـونږ غمونـه ټـول د اوښـکو پـه تسبو شماریږي

د چـا نفـرت مـو د زړګـي پـه کـور کـې ځـای جـوړ کـړی
د چــا یادونــه مــو د ســترګو پــه لېمـو شــماریږي

وطـن مـو وران، کـلی مـو وران، ګـودر مـو وران شـو خدایـه
زمـونږ سـپېڅلي شـهیدان اوس هـم پـه مـړو شـماریږي

اوس د وطــن د ښــکلاګانو څــوک صـفت نــه کــوي
اوس د وطــن ټـول ښایسـتونه پـه بمـو شـماریږي

ای مسـلم یــاره شـاعري پـر چــا اثـر نــه کــوي
دلتــه ریښــتیني شــاعران پــه لېونـو شــماریږي

# له کاروان سره روان یم

# شپونکی

د سپېڅلي کار لپاره له کاروان سره روان یم
د هدف پر سپېنه لاره له کاروان سره روان یم

ترگمیو کې مزل دی د رڼا په لوري درومم
له ماښامه تر سهاره له کاروان سره روان یم

په مستۍ مستۍ روان یم د جانان د کلي لار ده
برالا او بې انکاره له کاروان سره روان یم

وچې شونډې چاودې پونډې مخ پر وړانډې تلوسو کې
د خوندونو تر دیاره له کاروان سره روان یم

د حرم په نیت پیل کړی مې سفر دې قافله کې
هم په غره هم په اواره له کاروان سره روان یم

له انجامه غافل نه یم خو بیا هم ځم پر همدې لار
ښه پوهېږم چې تر داره له کاروان سره روان یم

مزل سخت لاره اوږده ده ستوماني مې ورکې نشته
خو افسوس چې بې کتاره له کاروان سره روان یم

ما ویل په اوږدو شپو کې به کاروان ته زمزمې کړم
خو اوس غلی بې گفتاره له کاروان سره روان یم

د بلا کارو سړی وم چې کوی مې شول ملگرو
کاریگر وم خو بې کاره له کاروان سره روان یم

عجیبه وصال فصال مې په نصیب دی دې سفر کې
چې د یار ترڅنگ بې یاره له کاروان سره روان یم

څه (شپونکی) وم! څه شپېلی وه! څه خوږه مې غږوله!
خو اوس پاتې له دې کاره له کاروان سره روان یم

# مناره قتلوي

عصمت الله بشام

زمونگ په کلي کې تیاره ده عاطفه قتلوي
هم دالفت او ورورگلوي دژوندډیوه قتلوي

سوله سنت ده نبوي خپل شرایط یې معلوم
نن په فردي قانون دسولي فلسفه قتلوي

دحسرت اوښکي تویومه بل څه نه لرمه
غربي سیلي زموږ دگُلوباغیچه قتلوي

دکلیسا غیږ کې لوي شوي ایاناته راغلل
زموږ د مسجد دشکلاکانو مناره قتلوي

سپیدی راوختي رڼا به مو پرچم خپره شي
دتکبیر شورده روڼ سحاردا توره شپه قتلوي

بشام ترڅوبه یم په دې سخت کړاوو کې میلمه
دپاپ لمسیان امام محراب کې پرسجده قتلوي

# د قطر ستونزه کې

## استعماري ځواکونه څه غواړي؟

حسن مومند

څو ورځې دمخه چې خليجي هېوادونو دخپل ډېر نېږدې اتحادي هېواد قطر سره خپلې ډيپلوماتيکې اوسوداګريزې اړيکې پرې کړې نوداسې محسوسېدله لکه ديوکورسره چې ټول کلی مرې ژوندی پرېښې وي ؛ په رښتيا چې قطرپه ټول منځني ختيځ کې همداسې يواځې ښکاري .

که وکتل شي نود روابطو دپرې کولو اقدام اصلاً د سعودي عربستان له لورې شوی اودعربومتحده اماراتو، بحرين ، مصر ، مالديپ يمن اوليبيا يې ملګرتيا وکړه .

سعودي اواتحاديان يې چې ددې مقاطعې له لارې قطر ته سزا ورکوي نو ګناه يې دابولې چې قطر دسخت دريځو بلکې ددوئ په اصطلاح دتروريستانوسره مرستې کوي ؛ ددې تر څنګ داهم دقطر جرم ګڼل کېږي چې دايران سره ښې اړيکې لري اوحمايت يې کوي حال داچې ايران دعربي نړۍ دبې ثباته کولولپاره ډېرې هڅې کوي ؛ اوخبره يواځې داړيکو درلودلو نده بلکې دايران په مرسته په بحرين کې درامنځته شوې هغې ډلې دمرستې تور هم په قطرباندې دی کومه چې نه يواځې داچې دبحرين د دولت کمزوري کول غواړي بلکې دسعودي په قطيف ولايت کې شيعه ګان دسعودي پر ضد بغاوت ته هڅوي ؛

درياض کانفرانس نه پس دقطر امير شيخ تميم په هغه وينا انتقاد کړی و په کومې کې چې په ايران تورونه لګېدلي اوپکې دايران دتنها کولوهڅې شوی وې ؛ دقطر په اړه دسعودي د دې دومره جدي غبرګون ښکاره لامل خوډېر خلک د قطر امير ته منسوبې شوې همدا خبرې بولي خودقطر دولت ترې انکار کړی او وايي چې د الجزيره په شمول يې څنې تلويزوني کانالونه هېګ شوي اوداسې خبرې پکې دهغو شريرانو له لورې وردننه شوی وې چې په عربي هېوادونو کې دنفاق پيداکولو هڅې کوي ؛ قطر دتلافۍ هڅې وکړې خوبيا اوبه له ورخه تېرې وې .

درياض کانفرانس کې شويو تقريرونو او اعلامې ته په پام سره ديمن نه تر شام پورې دټولوبد امنيوپړه پر ايران وراچول شوه اود اوباما دواکمنۍ پر مهال چې دامريکا له لورې دايران پر وړاندې کومه نرمي ښکاره شوی وه هغه هم ټرمپ رد کړه او يوځل بياپه ښکاره ايران دامريکا لپاره ددښمن هېواد حيثيت غوره کړ .

شنونکي وايې چې په داسې نا مناسبه فضا کې دقطر لپاره چپ پاتې کېدل کاميابه ديپلوماسي وه خو چې چپ پاتې نه شواو شيخ تميم دامريکا او سعودي په ويناوو تنقيدوکړ نو دخليجي هېوادونوله لورې دداسی غبرګون رامخې ته کېدل حتمي نتيجه وه .

دقطر پرضد اوسنی اقدام اصل کې ايران ته له ځان سره داپېغام لري چې نوربه ورته دعربو په چارو کې دمداخلې اجازه نه ورکول کېږي .

په عربي نړۍ کې دتيونس نه پيل شوی دعربودبهار په نوم په ولسي پاڅونونوکې هم مصر- اونور هېوادونه دقطر نه ناراضه وو ؛ داپاڅونونونه پرعربي هېوادونو مسلطو عربوپاچاهانو اوعربو ديکتاتورانو دخپل ځان لپاره هغه لوی خطر ګڼلوچې ګواکې دهمدوئ پرضد راپورته شوی وي ؛ سره

له دې چې په قطر کې مطلق بادشاهت دی خو وربانـدې تـور وچې دپاڅون کونکو حمایت کوي ځکه چې په مصرکې دولسي۔ پاڅون پـه نتیجـه کـې دحسنـی مبـارک واکمنـي ختمـه اوبیـا دانتخاباتوپه نتیجه کې دمحمدمرسی په مشری کـې داخـوان المسـلمین حکومـت رامنځتـه شـو نوداقتصـادي مشـکلاتو درمنځته کېدوپر مهال ورتـه قطـر د ۷ نـیم ملیـارده ډالـرو زایدو مرستو ورکولو وعده کړی وه ؛ کله چې بیا دمحمدمرسې اداره دجـنرال السیسـی لـه لـورې ړنگـه شـوه بیـاهم قطـر داخوانیانو حمایت اومرسته روانه وساتله ؛ مشرانو تـه یـې پـه قطر کې پناه ورکړه اود الجزیره تلویزون له لارې یې په مسلسل ډول دجنرال السیسـی لـه ظلمونـو اود مرسـی اومصـري ولـس دمظلومیت نه نړی خبروله او پدې اړه به یـې دقـوي شـنونکو شننې خپرولې .

او خبره یواځې ددې ځانگړي حالت پورې محدوده نـده بلکې قطرلا له وړانـدې داخـوان المسـلمین اوحـماس حمایـت کوي او ددې دواړو تنظیمونوځني مهمـو مشـرانو تـه یـې پنـاه ورکړیده ؛ حال داچې ټول خلیجي هېوادونه او په ځـانگړې ډول مصر حـماس او اخـوان المسـلمین دواړو تـه ددښـمن پـه نظـر گوري او اوس یې تروریست تنظیمونه گڼي .

دنړیوالوچـارو پوهـانو پـه انـدواک تـه دشـیخ تمـیم درسېدونه پس ده دقطر په اړه یوه ځانگړی پالیسي وضع کړه ؛ دده هیله داوه چې قطر دې په منځني ختیځ کې لکه دسویس ناپیلی هېـواد وي اوهـم دې سره دخپـل کوچنیـوالي دمنځنـي ختیځ په ټولو قضیو کې نمایندگي ولـري ؛ لـوبې وي ، جنگـي مسایل وي او که فضایې حدود وي .

الجزیره تلویزون دامریکا سی این این په طـرز جوړشـوی یوداسې تلویزون دی چې دعربی او انگلیسي ژبو پرتـه هـم پـه ځینو ژبو نشرات کوي ؛ داسـې کـم خبراوموضوع بـه وي چـې ددې چېنل لاس رسی ورته نه وی شوی نو ځکه یـې دتبصـراوو شـننو پـه عـربي نـړۍ ډېـرې جـورې اغېـزې پرېـوتې ؛ دازاد جورنالیزم کوم مقام چې دې تلـویزون ترلاسـه کـړ پـه عـربي نړۍ کې یې ساری نه ترسترگو کېږي اوپه کم وخـت کـې چـې کوم مقبولیت ورپه برخه شوداهم ساری نه لري .

خو په مصرکې داخوان المسلمین دحکومـت راتلـو اوبیـا ړنگېدوپرمهال چې الجزیره دې غورځنگ ته کوم میلان ښکاره کړنو دمصر دولت ددې تلـویزون سـخت مخـالف شـو او ددې هېواد سره پر دښمنۍ او ددولت دړنگولو په هڅو یې تورن کـړ .

همـداراز چـې کلـه دتېلونرخونـه راوغورځېـدل نـوددې تلـویزون مبصرـینوله لـورې دسـعودي شـاهي کـورنۍ دسختوانتقادونو ښکار شوه او داخبره ډېـره عامـه کـړای شـوه چې اوس دعربو دمتحـده ایـالاتو، کویـت اوسـعودي پـه څېـر دهېوادونـو دتبـاهۍ وخـت رارسـېدلی دی چـې همـدا ددې هېوادونو دسختې غصې سبب شوی و او یووخت ترې دقطر پر ضد دهمداسې غبرگون دښکاره کولو تمه کېدله .

دا تورونه اودتورونو په نتیجه کې دسعودي اواتحادیانوله لورې رامنځته شوې مقاطعه که څه هم دقطر لپاره خورا ډېـره تاواني ؛ له اندېښنو ډکه اوخطرناکـه ده خوښـه داده چـې قطـر دهوښیارۍ نه کار اخستی دی اوپه مقابل کې یې تېز غبرگـون ندی ښکاره کړی اونه یې هم کوم داسې اقـدام کـړی چـې دلا زیاتی بدگومانۍ ، لفظي شخړی یاجنگ رامنځته کېـدو سـبب شي ؛ بس دقطر دباندنیو چارو وزیر ایلـه همـدومره ویـلي دي چې پرې لگول شوي تورونه له فهم نه پورته دي .

دترکې ولسمشر طیب اردگان اودکویت امیر شـیخ جـابر الصـباح د دواړولوریـوترمنځ دسـولې اودخـبرو اترولـه لارې دستونزې دحل هڅې وکـړې خوسمدسـتي یـې کومـه ځـانگړې نتیجه نده ورکړی ؛داځوکرښې چې لیکم نـوي اطلاعـات دادي چې د سعودي له لورې وړاندې کړای شوي ټـول شرطونـه قطـر ردکړي اوپه مقابل کې یې سعودي ویلي دي چـې بندیزونـه بـه لاپسې وغزوي .

سره له دې چې په سرکې دامریکا ولسمشر ټرمـپ دقطـر پر ضد دسعودي او اتحادیانو عمل ستایلی و او ښه په صراحت




له لوري دیو نوي خورا خطرناک پلان دپیل ډېر مهم اقدام دی .

لکـه څرنگـه چـې داول نړیـوال جنـگ نـه سمدستي وروسته دعثماني خلافت دړنگولـواو پـه نتیجه کې یې ټول منځنی ختیځ دخپل نفوذ سیمې گرځولو په موخـه داستعماري ځواکونـو ټولـه توجـو دمنځني ختیځ پر لوروه او دلته یې دعربانو اوترکـانو تـرمنځ دتعصـباتو راپیـداکولو لپـاره ډېـر کـار وکـړ؛ عربان یې دترکانو پر ضد بغاوتونوته راوپارول چې په نتیجه کې دهغـه مهـال دمسلمانانودعظمت، عـزت ،طاقـت ،وحـدت او اجتماعیت وروستی منار ړنگ شو؛ یوخلافـت پـه لسگونوټوټو وویشـل شـو؛ پـه مختلفونومونـو دلتـه کـوچني اونسـبتاً لـوی هېوادونـه رامنځتـه اوپـرې دشاهانو او شیخانوپه لبـاس کـې استعماري ځواکونو ته وفادار لاسپوڅي مسلط کړای شـول اودا خبره یقیني کړای شوه چې بیا هیڅکله هـم مسلمانان یوقـوت جوړ نه شي اونه کله په یوحاکم باندې راټول او داشـغالگرو پـه مقابل کې دودرېدو توان پیداکړي .

ددې جغرافیایي تجزیو اوانتشارنه پـس پـه مسلمانانوکې دفکري اوعقیدوي اختلافاتو او انتشار راپیداکولولپاره هم ډېـر کاروشو دترکانو پر ضد دعربـانو دقیـام بنسـټ خوهسـې هـم لساني اوقومي تعصب و؛ بس دهمدې پدیدې دلا زیات خپرېدا او جورکېدا لپاره عرب نشنلزم تـه لا زیاتـه وده ورکـړای شـوه ؛ دیومستقل حرکت شکل یـې غـوره کـړ اوچـې کلـه پـه همـدې بنسټونو دبعث گوند رامنځته شو نو دالحادي افکارو دخپرولو ، دحقیقي اسلام نه دمسلمانانو دلـرې کولـو اوداسلام پـه نـوم دمسلمانانو دراجمع کېدو دمخنیوي لپاره علني کار پیل شو .

ددې نه پس بیا په ټول منځني ختیځ کې دشیعه اوسـني پر بنسټ ددښـمنیو اوتعصـباتو راپیـداکولو پـه موخـه دعـراق اوایران ترمنځ دجنگ فضا رامنځته کړای شوه اوحقیقت دادی چې له هماغې ورځې نه په با امنه منځني ختیځ کـې بـد امنـي شروع شوه اودهمدې ځای نه په هېوادونوکې داخلـي دښـمني پیل او دکورنو جنگونو درامنځته کـېدو بنسـټ کېښـودل شـو یې ویلي ووچې داسعودي ته دده دسفر ثمرات دي څکه چې هـوري دتروریـزم دتمویلونکوهېوادونـو پـر ضـد دیـولړ اقداماتویادونه شوی وه .

خو امریکا بیاوروسته نسبتاً داحتیـاط لار خپلـه کـړه او ډونلډ ټرمپ وویل چې خلیجي هېوادونـه دې داتحـاد مظـاهره وکړي اوخپلې ستونزې دې دخبرو له لارې حل کړي .

دیادولو وړ ده چې دبرتانې نه دازادۍ اخستلونه پـس پـه سـیمه کـې دخپـل حضورپه موخـه امریکـا دقطـر دسـاتنې اوسالمیت په نوم دقطر په العدید نومي ځـای کـې فـوځي اډه جوړه کړه چې تر ننه دا اډه قائمه ده ؛ دادټول منځني ختیځ په سطحه د امریکـا ترټولـو سـتره فـوځي اډه ده چـې پکـې تـر ۱۰ زروپوري امریکایې فوځیان شتون لري؛ دمنځني ختـیځ نـه تـر جنوبي آسیا پورې په ټولو فوځي عملیـاتو کـې دهمـدې فـوځي اډې فوځیان گډون کوي ؛ پر افغانسـتان دیرغـل پـر مهـال بـه دهمدې اډې نه دخوراسترو طیارو له لارې وسلې اونـور فـوځي مهمات راوړل کېدل .

ویل کېږي چې ددوهم نړیوال جنگ نـه را وروسـته داتـر ټولوستر هغه فوځي مرکز و چې ترې دهوا له لارې وسلې انتقال شوې .

د اوسني بحران پرمهال هم امریکا دقطر ددې میلمسـتیا نه مننه ښکاره کړه .

دقطر سره رامنځته شوی مقاطعه یواځې دیوهېوادپر ضد مهالنی اقدام ندی بلکې دا په سیمه کې داستعماري ځواکونـو

چې ددې دښمنۍ خطرناک عملي تصویر نن موږ په یمن اوشام کې په خپلو سترګو وینو.

دلته دلویدیځ اوپه ځانګړې ډول دامریکا پالیسي دا روانه ده چې په ښکاره یا په پټه یو لوري ته ددوستۍ لاس ور اوږدوي اوبل لوری دورخطایۍ او وېرې ښکار کوي .

همدا راز په مختلفو وختونوکې هر لوري ته دنورو هېوادونو په کورنیو چارو کې د لاسوهنو لارې برابروي اوبل جانب پرې سخت غصه کوي اودښمني یې زیاتوي .

له تېرې یوې نیمې لسیزې راهیسې ایران اودایران همفکرو قوتونوته له یوې خوا په ټولې سیمې کې دازادانه فعالیت موکه ورکړل شوه چې له امله یې دیمن نه ترشام پورې خونړۍ جنګ رامنځته اوټوله سیمه بد امنه شوه ؛ له بلې خوا دامریکا اونور لویدیځ اصل واکمنانو داوباما اداره دایران داتومي وسلودلانجمنې موضوع په اړه ترون کولوته آماده کړه چې له امله یې دایران دولت په سختې غلط فهمۍ کې اخته شو ؛ ایران فکر وکړ چې ګینې دامریکا په څېر سترځواک یې هم په وړاندې سر ټیټولوته اړ شو او په سیمه کې یې دیران ځواک ومنلوخو چې څنګه داوبامادواک موده ختمه شوه نو هرچا ته معلومه شوه چې دایران سره رامنځته شوی ترون په ښکاره ترون خوپه حقیقت کې سراب و چې دټرمپ دراتلوسره سم په هوا کې تحلیل شو.

داچې ایران ته په سیمه کې دفعالیت دمو کې ورکولو له امله دایران نفوذ دلبنان نه پس عراق ، یمن اوشام ته هم وغزېدلو؛ دلته دایران خپلې ملېشې په جنګ کې دخیلې شوې او دایران وفادارانو له همدې ځایونو نه دسیمې دهېوادونو ګواښل پیل کړل نو دسعودي په شمول ټولوسني عربو هېوادونو ایران ته داصل خطر او اصل دښمن په نظر وکتل او په خپلو منځونو کې یې سره دا خبره غوټه کړه چې وجود ته یې اسرائیل نه بلکې ایران ستر خطر دی نوهمداده چې اتحادونه هم دایران او دایراني نظر پر ضد جوړېږي ؛ وسلې هم دهمدې لپاره اخستل کېږي چې دایران نه پرې ځان وساتل شي اوامریکاته نزدېکت او ورسره ددوستۍ جوړوالی هم له دې امله دی چې په ښکاره اوس امریکا دایران مخالفه ده او داسې ښکاري چې نور په سیمه کې دایران مخه نیول غواړي .

نو ترټولو خطرناکه خبره همداده چې دعربانو یقین ته پرېوتې ده چې اصل دښمن یې اسرائیل نه بلکې ایران دی.

ټرمپ چې په ریاض کې ودرېږي او ایران تر ټولو لوی خطر ګڼي نودا دهمدې دجالي لوبې برخه ده .

دتوجو وړ خبره ده چې ټرمپ داخبره په واشنګټن کې ولې نه کوي ؟

امریکا هیڅکله هم په اوسنو حالاتو کې دایران سره ښکر اړمول نه غواړي ؛ دامریکا دخپل پلان له مخې به پر عربي نړۍ دایران وېره تر هغې وې ترڅو چې په عربي نړۍ کې دامریکا ټول شوم پلانونه ، نه وي تطبیق شوي ؛ کله چې په ټول منځني ختیځ کې دامریکا اولویدیځ شوم پلانونه تطبیق شي (داسې به نه کېږي ان شاء الله تعالی ) بیابه امریکا اواسرائیل په شریکه دایران پرضد دجنګ فضا رامنځته کوي.

پدې کې هیڅ شک نشته چې امریکا اونور غربي اسعماري قوتونه ګریټر یالوی اسرائیلورامنځته کېدل خامخا غواړي او دې خبرې ته له حده زیات ژمن دي ؛ په عربي نړۍ کې بد امنیو، ګډوډیو ، دنظامونو ړنګېدلو اوکورنو جنګونو اوس عربي نړۍ له دې ویستلی ده چې داسرائیلو دکوم نوي یرغل ، اشغال اوقبضې په مقابل کې سر راپورته کړي .

داسرائیلو په مقابل کې دسر راپورته کولو خبره اوس ډېره شاته تللی ده ؛ اوس ددې لپاره هڅې رواني دي چې دسعودي په شمول ټوله عربي نړۍ اسرائیل په رسمیت وپېژني داسرائیلوټولې قبضې ومنل شي او ورو ورو دګریټراسرائیل رامنځته کېدو ته لار برابره شي .

دفلسطیني مسلمانانو نه په غصب شویوختیځ بیت المقدس اوغرب اردن کې د ۱۹۶۷م نه تراوسه ۱۴۰ کوچني ښارګوټي جوړ شویدي چې پکې دبهرنو هېوادونونه راوستل شوي ٦ سوه زره یهودان مېشت کړای شویدي ؛ د ملګرو ملتونو

اداري دا ټولې ودانۍ نا قانونه ګرځولې دي اوشتون يې داسرائيليانو او فلسطينيانو ترمنځ دسولې او ددوه مستقلو هېوادونو درامنځته کېدو په لار کې خنډ ګڼي خو چې داسرائيلوترشا امريکا ولاړه ده نودملګرو ملتونو اويانورې نړۍ يې هيڅ پروا نده لرلې اوښه په درز کې يې دخپلو کورونونه دفلسطينيانو دويستلو ، ددوئ دځمکو د غصبولو اودمزاحمت په صورت کې ددوئ وژلوته دوام ورکړی .

ټرمپ ښه په جهر داسرائيلود غصب روان عمل تائيدوي .

داچې اسرائيل پلان لري چې قبضه شوی بيت المقدس خپله پلازمېنه وګرځوي او دامريکا نه يې غوښتنه ده چې خپل سفارت دې دلته را انتقال کړي ؛ ټرمپ داسرائيلودې غوښتنې ته سر ښورولی او اراده يې ښکاره کړې چې خپل سفارت به رانقلوي ؛ ټرمپ داهم وايي چې په ختيځ بيت المقدس اوغرب اردن کې جوړشوي کورونه د دواړو لوروترمنځ په سولې کې خنډ ندی بلکې دنويو ودانيو جوړول به خنډ وي .

داسرائيلوپه اړه دټرمپ ددې پاليسۍ په مقابل کې چې ټوله عربي نړۍ چپه خوله ده او دامريکا ددې پاليسۍ اوپه قبضه شويو نويوسيموکې داسرائيلوله لورې دنويو ودنيو جوړولو داعلانونوپه مقابل کې چې دعربي نړۍ يوکمزوری غبرګون هم نه رامخې ته کېږي دا ددې خبرې روښانه دليل دی چې عربي نړۍ اوس دفلسطين دمسئلې ، دآزاد فلسطيني دولت رامنځته کېدو اودړومبۍ قبلې دازادۍ په اړه توره اوډال غورځولي دي اوپدې اړه دهغه څه منلوته تيار شويدي څه چې ورنه امريکا غواړي .

نوځکه خواسرائيلو دقطر سره دسعودي اونوروعربي هېوادونوپرېکون ستايلی دی او ويلی يې دي چې اوس دتروريزم پر ضدديوداسې ستر اتحاد جوړولو وخت را رسېدلی دی چې اسرائيل هم دهغه اتحاد برخه جوړېدای شي.

داخومره خطرناکه خبره ده چې د فلسطين دازادۍ لپاره دخپلو سرونوجارونکو مسلمانانوپرضد اسرائيل دعربواسلامي هېوادونو ديو داسې اتحاد درامنځته کېدو هيله څرګندوي چې اسرائيل هم دهغه اتحادبرخه وي ؛ داسرائيلو دوجود نه ترننه کله داسرائيلو له لورې داسې څرګندونې ندي رامخې ته شوې .

ډېره حيرانونکې خبره داده چې داسرائيلو ددې خطرناکو ارادو ښکاره کولو په مقابل کې ټول عرب هېوادونه چپه خوله دي چې دا دټولې نړۍ دمسلمانانولپاره ډېره دتشويش وړخبره ده .

عربي دولتونه بايد پدې پوه شي چې اسرائيل تسليمول يا ورته نېږدېکت اويا هم دفلسطين په سر سودا ؛ يا پدې اړه بې کفايتي ښکاره کول ددوئ د ډېرې سترې بدنامۍ سبب ګرځي او په ټول عالم اسلام کې يې حيثيت دخاورو سره خاورې کوي نو بايد پدې اړه هيڅ جفا ښکاره نه شي .

همدا راز دمنځني هېوادونونه عموماً اودسعودي او ايران نه په ځانګړي ډول دټولې اسلامي نړۍ هيله داده چې داستعماري طاقتونو دشومو پلانونو ښکار نه شي ؛ ديوبل په مقابل کې د دښمنۍ ښکاره کولو هلاکونکی کلتور پرېږدي ؛ هرجانب حقايق ومني ؛حق ته غاړه کېږدي ؛ په منځني ختيځ کې دبد امنيواوکورنو جنګونوپه له منځه وړلو کې په اخلاص خپل رول ادا کړي اودنورو جنګونو درامنځته کېدو مخنيوی وکړي .

اوس چې دمنځني ختيځ په شمول داسلامي نړۍ په ګڼوسيموکې جنګونه روان دي اودې جنګونو مسلمانان د ډېرو سترو زيانونو سره مخامخ کړيدي اسلامي نړۍ دنوروجنګونو تحمل بېخي نه لري نو که په منځني ختيځ کې داسې جنګ رامنځته کېږي چې ايران اوسعودی پکې ديوبل سره مخامخ کېږي نوپدې سره به نه يواځې منځنی ختيځ بلکې ټوله اسلامي نړۍ دسترې تباهۍ سره مخامخ کېږي او داستعماري طاقتونو شوم پلانونه به پوره کېږي .

ديوبل په مقابل کې دسخت دريځ اودښمنۍ ښکاره کولو کې ددوئ ټول عمر تېر شو؛ ارمان چې يو بل ته دتېرېدنې اوديوبل په مقابل کې دنرمۍ ښکاره کولو کلتور هم دوئ زده کړي .

# د جګړې غزول ...

## افغانستان لپاره د ټرمپ نوې ستراتیژي

احمد مختار

د امریکایي ولسمشر ډونلډ ټرمپ په مشرۍ د امریکایي ادارې نیږدې اووه میاشتې تیرې شوې خو لا یې هم د افغ نستان په اړه جنګي ستراتیژي نه ده معلومه .

په امریکایي رسنیو کې تل دا خبره د سر ټکی وي چې پنټاګون غواړي په افغانستان کې د جنګي وضعیت او هلته د میشتو ځواکونو لپاره نوې ستراتیژي ولري.

خو سره له دې چې په افغانستان کې وضعیت تر بل هروخت نا آرامه او د طالبانو په جګړو کې شدت راغلی بیا هم تر اوسه پورې امریکایي دفاعي چارواکي نه دي توانیدلي د دې هیواد لپاره مشخصه تګلاره اعلان کړي.

کابل ته د امریکا د دفاع وزیر جیمس متیس په شمول د سپینې مانۍ امنیتي سلاکار مک ماستر، د امریکایي وسله والو ځواکونو لوی درستیز جنرال جوزیف دانفورد او په تعقیب یې د کانګریس د پوځي خدماتو د کمیټې مشر سناتور جان مکین یو په بل پسې راغلل او ټولو د افغانستان وضعیت له نیږدې وکوت خو بیا هم لا د هغوی نوې ستراتیژي په یوه اوبله پلمه له یوې نیټې بلې ته ځنډول کیږي.

**د امریکایي ستراتیژۍ د ځنډ لامل څه دی ؟**

امریکایانو د روان کال له پیله د خپل پوځي ایتلاف او همدا راز د شمالي اتلانتیک له تړون (ناټو) څخه وغوښتل چې افغانستان ته نوي ځواکونه ولیږي خو د امریکایانو دې غوښتنې ته نه د دوئ د پخواني ایتلاف او نه هم د ناټوتړون لخوا مثبت ځواب وویل شو.

یواځې انګلستان د کوټو په شمار محدود شمیر سرتیرو رالیږلو موافقه کړې چې د مشورې اوروزنې په برخه کې به له افغان داخلي ځواکونو سره کار کوي.

نور دواشنګټن له ټولو هلوځلو سره سره په افغانستان کې د جګړې پرمخ وړل او د هغې پوځي او لوجیستکي تجهیز یواځې امریکایانو ته پاتې شو.

د امریکې نوی ولسمشر چې اساسا یوه پانګوال او تجارتي شخص دی له پوځي او سیاسي سرګرمیو سره نه دلچسپي لري او نه هم په دې مورد کې لازمه پوهه لري ؛ ځکه نو په مجموع کې د افغانستان له قضیې سره د امریکا د نورو ولسمشرانو بوش او اوباما په څیر د پام وړ تعلق نه ښیي.

په افغانستان کې د جګړې ۱٦ کلن اوږد والی ، په هغې کې د لسګونو زره امریکایي سرتیرو مرګ ژوبله او د هغوي په مقابل کې د مقاومتي ځواک (طالبانو) لا پیاوړي کیدل نور هغه عوامل دی چې امریکایان یې په مجموع کې د دې جګړې د نتائجو په اړه نه هیلې کړي او تري ناخوښه دي.



ډاینکورپ په ډېر مشهورو او بدنامه امنیتي کمپنیو اجرتي جګړه ماران را ولېږي.

دې خبرې ته د نیویارک معتبرې امریکایي ورځپاڼې هم د جولای د میاشتې په (۹) په خپل رپوټ کې اشاره کړې او ویلي دي چې پنټاګون غواړي افغانستان د سرتیرو لیږلو لپاره له بلک واټر او ډاینکورپ کمپنو سره قرارداد وکړي.

د ورځپاڼې په حواله ویل کیږي چې د دغو دواړو کمپنیو مشرانو په دې اړه خپلې طرحې د ټرمپ ستر ستراتیژیست ستیفن بینن او د هغه زوم جراډ کوشنر ته سپارلې دي

پنټاګون ځکه افغانستان ته د بلک واټر او ډاینکورپ کمپنیو د جګړه مارو لیږلو ته مجبوریږي چې له یوې خوا د دې کمپنیو اجرتي جګړه ماران له امریکایي اتباعو پرته د نورو مافیایي شبکو غړي وي چې په وژل کیدو، ورکیدو او بندي کیدو یې د امریکایي پوځ نوم نه بدیږي او نه یې هم څوک پوښتنه کوي.

او له بله پلوه کومه ګډوډي، وحشت او نسل وژنه چې د دغو بدنامو کمپنو مربوط جګړه مار یې کوي د پوځ رسمي سرتیري په هغه کچه نشي کولای.

د اشرف غني مزدور او بلواکه رژیم مخته تر دې چې د افغانستان په اړه د امریکایي جنګي ستراتیژۍ په محتویاتو ځان خبر کړي هغه یې تائید کړې او د افغانستان د امنیت لپاره یې ګټوره بللې.

د دوئ لپاره نه د افغانستان ولس مهم دی او نه دهغه امنیت ؛ بلکې یواځې دا ورته مهم دي چې د اشغالګرو د اشغال تر سیوري لاندې د دوئ د فاسد رژیم د بقاء چانس میسر وي اوبس.

له بله پلوه په افغانستان کې د امریکایانو تحت الحمایه رژیم هم د خپل منځي اختلافاتو او پریمانه مالي او اداري فساد له وجې په افغانستان کې د امریکایي ستراتیژیکو پلانونو په عملي کولو کې پاتې راغلی چې دا او دیته ورته نور ډیر وجوهات د دې لامل شوي چې امریکایي چارواکې د افغانستان په اړه د یوې مؤثرې پوځي ستراتیژۍ په ترتیب او اعلانولو کې پاتې راشي.

په افغانستان کې د امریکایي ځواکونو اشغالګرانه وضعیت ته په کتو سره داسې ښکاري چې د افغانستان په اړه د امریکا نوي جنګي ستراتیژي به هم د لته د جګړې پر دوام متمرکزه وي چې د جنګي ماشین چلولو لپاره یې کم ترکمه یو شمیر امریکایي جګړه مارو ته هم اړتیاده .

اوس امریکایي چارواکي د دغه محدود شمیر امریکایي جګړه مارو په پیدا کولو او افغانستان ته رالیږلو کې له ستونزو سره مخ دي؛ ځکه امریکایي ولس پوهیږي چې د دوئ کوم سرتیري چې د پنټاګون د رسمي تشکیلاتو په لړ کې افغانستان ته ځي هغوی به حتما هلته د یوې بې هدفه جګړې په ترڅ کې وژل کیږي ځکه نو هغوئ نور نه غواړي چې خپل اولادونه یې په یوه شرارتي جګړه کې په داسې لا پروایي ووژل شي.

همدا وجه ده چې اوس د پنټاګون چارواکي غواړي افغانستان ته د جګړې د پرمخ بیولو لپاره د بلک واټراو

# بخښنه

# او ټولپوښتنه...!!

موسی فرهاد

ښايي تاسو به ووايئ چې دا څنګه سرليک دی، ممکن فکر مو يوې افسانوي غوندې خبرې ته ولاړ شي چې حقيقت نه بلکې د يوې موضوع تمثيل پکې وړاندې شوی وي ، خو داسې نه ده ، دا يوه رښتيا خبره ده ، يوه بخښنه ده ، په يوه لفظ ، يوه سړي د يوه مړه جسد په وجه ، د يوه ظالم په استاځولۍ د يو مظلوم په وړاندې بخښنه غوښتې چې وايې خدايه ما د هغې تېروتنې له امله وبخښه چې څوارلس کاله وړاندې مې ترسره کړې وه. د بښنې کيسه به په راتلونکو کرښو کې ولولئ.

دا راز يوه رښتينې ټولپوښتنه ده چې د طالب جنګياليو په وړاندې د جنګېدونکو امريکايانو په پتلونونو کې بايد تنۍ وي او که څنځير ؟ د سروې پايله او پر هغه باندې د سُپر پَاور د پوځ ودانه ستراتيژي به هم په وروستۍ کرښه کې ولولئ.

د امريکا د کانګرس غړي، ولټربی جونز او ورسره جون ګرام اينډي، څه موده وړاندې د کانګريس د ودانۍ په وړاندې يو خبري کنفرانس ته د هغه قانوني ترميم په اړه خبرې کولې چې دوی وايي د کانګريس له لارې يې هڅې پيل کړې چې نور به په افغانستان کې پر پوځې عملياتو د دوی بوديجه مصرف نشي.

د کانګرس غړی ولټر بي جونز وايي : ' Asking God To Forgive Me' له خدايه غواړم چې ما وبخښې ، د هغه څه لامله چې د جګړې په پلوۍ مې رايه ورکړې وه. N.C. Lawmaker Seeks Redemption For War Votes

څوارلس کاله وروسته پر خپله هغه پريکړه ډېر زيات پښېمانه يم چې د جګړې په حق کې مې بوش ته رايه ورکړه

ده په جګړه کې د يو وژل شوي سرتيري Michael Bitz تصوير ته په اشارې سره ووېل: زما په وړاندې دا لومړنۍ جنازه ده چې زه يې پر دې مجبور کړم چې فکر وکړم چې ما څومره غلطه پريکړه کړې وه .

ميچل بيټز د ۲۰۰۳م د مارچ په ۲۳مه په عراق کې په داسې حال کې ووژل شو چې له خپلو هغو دووغبرګولې ماشومانو سره يې ليدنه ونه شوه چې يوه مياشت وړاندې پيدا شوي وو .



ټولپوښتنه ...!

وايي يو سړی د اتڼ په مسابقه کې پاتې راغی بيا يې د خپلې ماتې د جبران لپاره ويل چې ميدان کوږ و. د ( USA Today) ورځپاڼې په حواله ، کله چې په افغانستان کې د امريکايي عسکرو څخه پوښتنې گروپړنې وشوې چې ولې د طالبانو بريدونو ته ځان نه شي ټينگولای؟

د ډېرو عسکرو جواب دا وو چې زمونږ د پتلون څنځيرونه يا خو له اوله خراب وي او يا د گردونو او دوړو له امله زيانمن شي، نو مونږ خپل پتلونونه او جيبونه ټينگ نه شو تړلی. ځکه چې د پتلون څنځيرونه ډير اوچت آواز راباسي او کله- کله چې مونږ خپل پتلونونه تړو يا خلاصوو نو د آواز له لاسه زمونږ موقعيت طالبانو ته معلوم شي او بيا په هماغه ځای ډز کوي.

له همدې ځايه وه چې د امريکا پوځ په ۲۰۰۷م کال کې يوه ټولپوښتنه ترسره کړه، په ټولپوښتنه کې زياتره عسکرو د پتلون لپاره د توکمو (تڼيو) لگول غوره بللي وو، په داسې حال کې چې يوازې ۱۱٪ عسکرو څنځير ته رايه ورکړې وه.

هماغه و چې د امريکا پوځ پريکړه وکړه چې په افغانستان کې د خپلو عسکرو پتلونونه د تڼۍ والا پتلونونو باندې بدل کړي.

پای ....

جونز چې د ريپبليکن گوند غړی او په کانگرس کې د شمالي کيرولينا استاځيتوب کوي ؛ د نوموړي سرتيري د جنازې مراسمو ته ورغلی او وايي زه هيڅکله دا صحنه نشم هيرولای چې د ميچل بيټز سمندري سرتيري ميرمن څنگه د هغه د خط داستان راته بيانا وه. چې له ميچل نه يې ترلاسه کړی و.

زه فکر نه کوم چې څوک دې هلته پاتی شوي وي چې سترگې يې له اوښکو ډکې نه وي ، جونز وايي د هغه ميرمني په اخير کې خپل خاوند ته د خطاب په بڼه وويل : ښايي زه بيا تا دلته د ځمکې پرمخ ونه وينم ، مگر په بله دنيا کې... . مننه ميچل بيټز.

مسټرجونز د کانگريس د ودانۍ په وړاندې د تصويرونو يو اوږد ليست را ځوړند کړی چې څه دپاسه د ۵۶۸ وژل شويوسمندري سرتيرو تصويرونه دي. دغو سرتيرو په ليجيون نومي پوځي کيمپ کې دندې درلودې او ټول د والټرجونز د ولسوالۍ اړوند کسان دي ، دوی د عراق او افغانستان په جگړه کې وژل شوي دي.

د مرحوم شیخ الحدیث

# مولوي غلام حیدر صاحب

# ژوند ته لنډه کتنه

قاري سعید

اراده مې کړې وه چې د اسلامي امارت د یو لوړ رتبه چارواکي او مشر عالم شیخ الحدیث مولوي غلام حیدر صاحب ژوندلیک مرتب او له کورنۍ څخه یې معلومات را غونډ کړم.د هجرت په مینه کې د نوموړي د کور په تلاش ووتم. ما فکر کاوو چې مولوي غلام حیدر صاحب لکه څنګه چې له سترو علماء کرامو او د اسلامي امارت له لوړ رتبه اراکینو څخه و او د خپل عمر په اوږدو کې یې ددین ستر خدمتونه سرته رسولي. نو دنیایي ژوند به یې هم همداسې د ترفه او تنعم له سهولتونو ډک تیر شوی وي.کور به یې د کلي او ګاونډ مشار الیه وي او د لږ تر لږه د خپلې علاقې او سیمې د معیار مناسب میشت ځای به ترې په میراث پاته وي.

خو زه خبر نه وم چې د الله تعالی ددین د خادمانو لکه څومره چې د آخرت برخه درنه او ودانه وي د دنیا برخه یې همدومره له التفاته غورځولې او بې اهمیته بللې وي.د مرحوم مولوي غلام حیدر صاحب میشت ځای مې له ډیرو پوښتنو وروسته وموند. دا هغه کور و چې نوموړي په کې د عمر وروستي ډیر کلونه تیر کړي و. د یوه جامع مسجد تر څنګ یوه د خټو کوډله چې د فقر او مسکنت علائم ورباندې نمایان ول.د شیخ صاحب مرحوم زوی مې په ډیره مینه استقبال وکړ او بیا یې د شیخ صاحب مرحوم د غریبانه مهمانخانې به خوا رهبري کړم.

د شیخ صاحب مرحوم له میشت ځای څخه د معنویت یو عجیب اغیز محسوسیده. د شیخ صاحب له زوی سره مې د نوموړي په ژوند اوږدې خبرې وکړې. هغه د شیخ صاحب مرحوم د علمي،جهادي او تدریسي ژوند په باره کې مفصل معلومات راکړل. په پای کې یې وویل شیخ صاحب یو پرهیزګار او زهد پروره عالم و. له دنیا سره یې نه لګیده له نوموړي څخه یوازې دغه یوه الماری کتابونه په میراث پاته دي چې مخامخ یې وینې.

ما چې د اسلامي امارت د نظامي محاکمو د عمومي رئیس شیخ الحدیث مولوي غلام حیدر صاحب هغه ستر خدمات او او اخلاص او دا غریبانه ژوند سره پرتله کړل نو ذهن ته مې اوس هماغه د عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه تاریخي وصیتونه راغې چې خپلو ملګرو ته به یې ویل: کونوا ینابیع العلم مصابیح الهدی أحلاس البیوت سرج اللیل جدد القلوب خلقان الثیاب . تعرفون في أهل السماء، وتخفون في أهل الأرض".
ژباړه : شئ او له ځانه جوړ کړئ د علم چینې، د هدایت څراغونه ، د خپل کورسره ملازمین( لکه هغه فرش چې همیشه په کورکې غوړیدلی وي) او شئ لکه د شپې

مشالونه چې زړونه مو نوي( ژوندي وي ) او جامې مو زړې وي د اسمان د اهل تر منځ پيژندل شوي او د ځمکې د خلکو تر منځ پټ او ناپيژنديه ياست.)

واقعا چې شيخ صاحب مرحوم هم همداسې ژوند تير کړ. هغه د علم چينه وه او هدايت څراغ و، نه خو يې له دنيا سره زړه وتاړه او نه يې هم د ځمکې په مخ د شهرت او عشرت تمنا وکړه. هغه د هغو کسانو له جملې وه چې يوازې د الله تعالی په نزد متعارف کيدل او مقبوليت د ځان لپاره کافي ګڼي.

## مرحوم شيخ الحديث مولوي غلام حيدر صاحب

شيخ مولوي غلام حيدر صاحب په ۱۹۴۵ ميلادي مطابق ۱۳۶۴ هجري قمري کال کې دکندهار ولايت دښوراوک ولسوالۍ د برېڅو د عليزو په کلي کې دسيمې د مشهور عالم ملافقير محمد اخند په کور کې دنيا ته سترګې وغړولې. د نوموړي پلار يو عالم او ديندار شخص و چې د خپل زوی تربيې او تعليم ته يې ډيره توجه درلوده.

په هماغو کلونو کې چې په افغانستان تاريخي وچکالي راغلې او د ښوراواک په شمول د اکثره سيمو مالداران او نور اوسيدونکي د اوبو د نه شتون له امله کډوالۍ ته مجبور شول. د مولوي غلام حيدر صاحب کورنۍ هم له ښوراوک څخه د کندهار د پنجوايي ولسوالۍ زنګاوات سيمې ته وکوچېده او دلته د شيخ صاحب پلار مولوي فقير محمد صاحب د ګريندي په علاقه کې امامت ونيو. همدغه مهال مولوي غلام حيدر صاحب هم له خپل پلار څخه سبقونه ويل او هم يې د کندهار ولايت په بيلابيلو سيمو کې له نورو علماء کرامو او مدرسينو څخه د ديني زدکړو حصول ته ادامه ورکوله.

کله چې د مولوي غلام حيدر صاحب پلار وفات شو. نوموړي د علم په حصول پسې سفر پيل کړ او بيا يې د پاکستان د بلوچستان ايالت په مختلفو مدارسو کې د وخت له تکړه علماء کرامو څخه ديني علوم ولوستل. ترديې چې په ۱۳۹۵ هجري قمري کال کې يې د شوال په ۲۵ مه د کوټې ښار د چمن پاټک په سيمه کې په دارالارشاد مدرسه کې له ديني علومو د فراغت سند ترلاسه او د فضيلت مبارک دستار يې پر سر کړ.

## تدريسي ژوند:

له فراغت وروسته شيخ غلام حيدر صاحب لومړنی تدريس د بلوچستان د کوټې د شابو کلي په قاسم العلوم مدرسه کې پيل کړ. وروسته يې د شالدرې په مظهر العلوم مدرسه او د جهاد په کلونو کې يې پ کوټه کې د حرکت انقلابي اسلامي په مشهوره مدرسه کې د تدريس دنده ترسره کړه. نوموړي د جهاد په کلونو کې په کويټه، پښين، ګلستان او نورو سيمو کې د تدريس او امامت سپيڅلې وظيفه ترسره کړه تر دې چې وروسته د بلوچستان په مشهوره مدرسه دار العلوم هاشميه کې د شيخ الحديث په توګه وټاکل شو.

مرحوم شيخ صاحب د خپل ژوند تر پايه له تدريس او تعليم سره نږدې پاته شو. حتی ترديې چې د طالبانو په اسلامي تحريک کې د وظيفې په مهال به يې هم د رسمي وخت نه مخکې او يا وروسته خصوصي شاګردانو ته ځيني کتابونه ويل او کله چې امريکايانو په افغانستان يرغل وکړ نوموړي د هجرت د ژوند په مهال يو ځل بيا دديني علومو تدريس پيل کړ او د وفات تر وخته په دې مهمه او مقدسه ديني وظيفه باندې مشغول پاته شو. مرحوم شيخ صاحب چې د خپل وخت يو ستر عالم او تجربه کار

مدرس و د اسلامي امارت ډېر مشران يې شاګردان پاته شوي وي نو ځکه يې د اسلامي امارت په نظامي او ملکي مسؤلينو کې ځانګړې محبوبيت او اعتبار درلود.

## جهاد او په اسلامي امارت کې خدمت

شيخ غلام حيدر صاحب د روس ضد جهاد په وخت کې د جهاد له مهموداعيانو او حتى بالفعله مجاهدينو څخه وه چې د مولوي محمد نبي محمدي صاحب د حرکت تنظيم په تشکيلاتوکې يې د کندهار په ښوراوک ولسوالۍ کې خپل مجاهدين درلودل او خپله يې له تدريس وروسته په مسلح جهاد کې برخه اخيستله.

د جهاد له بريا وروسته چې په افغانستان کې د ټوپکيانو لخوا د هرج و مرج دوره پيل شوه او بيا يې په مقابل کې د طالبانو اسلامي تحريک قيام وکړ.دغه وخت شيخ صاحب د بلوچستان کوټې ښار په موسى کالوني کې د وړې دورې په تدريس بوخت و چې يوه ورځ ورته د تحريک څو نفره پيژندل شوي کسان لکه شهيد ملا بورجان اخند،شهيد مولوي احسان الله احسان او مولوي وکيل احمد متوکل راغلل او له نوموړي يې غوښتنه وکړه چې د طالبانو په اسلامي تحريک کې شموليت وکړي او خدمت ترسره کړي.

شيخ صاحب له همدې ځايه خپل د تدريس له مسند ولاړ شو او د طالبانو د اسلامي تحريک چې دغه وخت يې ميوند،ډنډ او بولدک ولسوالۍ نيولې وې خو لا يې کندهار ښار نه و نيولی شيخ صاحب ورسره ملګری شو. شيخ صاحب په پيل کې د اسلامي تحريک د لومړني نظامي مشر. شهيد ملا محمد اخند په قيادت کې نظامي کاروانه کول او له خپلو ملګرو سره به جهادي کمربندونو ته تلو. مګر وروسته چې د امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد په امر نظامي محاکم تأسيس شول شيخ مولوي غلام حيدر صاحب د نظامي محاکمو عمومي رئيس وټاکل شو.

د اسلامي امارت نظامي محاکم ددې لپاره جوړ شوي ول چې نظامي خلک له خودسريو او تجاوزونو را وګرځوي. که په کومه دعوه کې به نظامي شخص مدعي عليه و هغه به نظامي محکمې ته راجع کيدله. دنظامي محاکمو مرکز په کندهار کې و او په کابل،هرات، مزار شريف، کندز، ننګرهار او ګڼو نورو ولاياتو کې يې محلي محاکمو او څانګې درلودې.

شيخ صاحب چې په جديت او قاطعيت مشهور و د نظامي محاکمو د رئيس په حيث يې په خپل وخت لوی او دروند خدمت درسره کړ.نوموړي ډير نظامي خلک له تجاوزاتو منع کړل او له اولس سره ښې ګوزارې ته يې واداره کړل.نظامي محکمې ته داسلامي امارت مؤسس مرحوم اميرالمؤمنين صاحب هم ډير متوجه و او تردې چې شيخ صاحب به کله ناکله دا د اميرالمؤمنين محکمه بلله ځکه ملا صاحب يې کارونه ډير تعقيبول تر څو خدای مکړه دنظامي مجاهدينو لخوا د خلکو حقوق تلف نه شي او يا د وسلې او قدرت په توسط خلک تهديد نه کړي.

نظامي محاکم که څه هم اوس د د اسلامي امارت د محاکمو د عمومي رياست تر امر لاندې فعاليت کوي مګر د امارت دواکمنۍ په وخت په بشپړه توګه مستقلې او دومره واک او ځواک يې درلود چې د قول اردو د قومندانانو، واليانو، امنيه قومندانان او د جهادي لومړۍ کرښې د مسؤلينو تر حده پورې نظامي مسؤلين يې د محاکمې ميز ته را احضارول او د اړونده موضوعاتو په رابطه يې ترې پوښتنې کولې.



هغه وخت چې امریکایانو په افغانستان یرغل پیل کړ چې شیخ صاحب د هیواد په شمال کې و او هلته یې د نظامي محاکمو د اړوندو کـارونو نگـراني کولـه. نومـوړی وروسته کندهار ته راغی او کله چې اسلامي امارت د هیواد له ښارونو شـاتگ وکـړ شـیخ صـاحب هـم د هجـرت لاره ونیـوه او د تـدریس او امامت وظیفې ته ستون شو.

خو په دې مرحله کې نوموړی لــه تــدریس او امامــت سره سره د امریکا پر ضد جهاد یو ټینگ داعي او د اسلامي امارت یو مهم مسؤل و چې په هره برخه کې یې خدمت ترسره کاوو.

د امریکا ضد جهاد په لومړیو کلونو کې د اسلامي امارت مشرانو لکه شهید ملا عبید الله اخند، ملا بـرادر اخنـد، شـهید مـلا داد الله اخنـد، شـهید مـلا اختـر محمـد عثماني او نورو همیشه له شیخ صــاحب سره ملاقاتونـــه او مشورې کولې او له ده به یې په ډیـرو مسـائلو کـې هـدایات اخیستل. وروسته شیخ صاحب د اسـلامي امـارت د عمــومي محـاکمو په عـالي اداره کې کـار پیل کړ او د څو نورو شیوخو سره په گډه یې د محاکمو او تمیز عالي اداره فعاله کړه چې تراوسـه پـورې په جهـادي دوره کـې د اسلامي امـارت د قضایه قـوې اساس بلـل کیږي.

## وفات او یادونه:

شیخ الحدیث مولوي غلام حیدر صاحب د هجرت په ژوند کې هغه مهال چې په تدریس بوخت و ناڅاپه مریض شو او له څو ورځې مرض بعد یې د ٦٧ کلنۍ په عمر د ۱۴۳۳ هجري قمري کال د ربیع الاول د میاشتې په ۲٦ مه نیټه د دوشنبې په شپه خپل روح حقیقي بادار ته وسپاره او له فاني دنیا یې رحلت وکړ. انا لله و انا الیه راجعون.

د جنازې د لمانځه له اداء کیدو وروسته د نوموړي جسد د کوټې ښار شیخ مانده ته نږدې د سیدانو په هدیره کې خاورو ته وسپارل شوه.

د شیخ صاحب د شخصیت په باره کې د نوموړي یوه د ډیر وخت شاگرد ملا برات شاه اغا وویل: شیخ صاحب یو ډیر متدین عالم او مهربان شخصیت و. په هر چا خصوصا طالبانو یې ډیره صله رحمي او مهرباني درلوده.له دنیا سره یې هیڅ تعلق او رغبت نه درلود. په داسې حال کې وفات شو چې کومه دنیا ترې په میراث پاته نه شوه.عبادت به یې په داسې عاجزي کاوو چې سړی به ورته حیرانیدو.د جهاد په لاره کې د خدمت ډیر شوقي و او مسؤلیت او څوکۍ یې نه خوښوله او همیشه به ورباندې په ډیر تاکید منل کیدله.مسؤلینو ته به یې همیشه سپینې خبرې کولې او خپلو وظائفو ته یې متوجه کول. الله تعالې دې په نوموړي رحم وکړي او برکت دې یې په اولادونو باندې کیږدي.

# د ښونځیو او ولسي سیمو بمبارول

# د دښمن نه توجیه کیدونکی جنایت

معین احمد (خروټی)

د روان ۱۳۹۶ هجري لمریزکال د چنګاش د میاشتې په درویشتمه او څلورویشتمه نیټه امریکایي یرغلګرو په اروزګان او کندوز ولایتونو کې په دوو بیلابیلو جنایتونو لاس پوري کړ.

په یوه پیښه کې یې په اوروزګان ولایت کې یې د ترینکوټ ښار اړوند د سجاول په سیمه کې پر هغو ولسي- وګړو شپني عملیات ترسره کړل کوم چې د جګړو او نا امنیو له وجې د خپلو کلیو او کورونو پریښودوته مجبوره او په ځنګلونو کې سرپنا ځانته غوره کړې وه.

په دې خونړۍ پیښه کې د سیمې دعیني شاهدانو او په ترینکوټ کې د ملکي روغتون د ډاکټرانو په وینا تر ۲۴ زیات ولسي وګړي چې میرمنې، ماشومان او بوډاګان هم ورکې شامل و مړه او ژبل شول.

دوهمه پیښه د کندوز ولایت مرکز اړوند د خان ابادبندرپه سیمه کې د امریکایي هوایي ځواکونو لخواد خواجه مشهد په نوم د نجونو ښونځي بمبارول دي چې د یاد ښوونځي پر بشپړ تخریب سربیره نیږدې هټۍ او کورونه هم متضرر شول او د ښونځي د ساتونکي په شمول درې ولسي وګړي ورکي ژوبل شول.

امریکیانو په کندوز کې په خپل دغه وحشیانه جنایت سره د سیمې د اوسیدونکو په خبره د هغه ځای ۵۰۰۰ ښځینه زده کوونکې له زده کړو محرومې او دهغوئ ښونځی یې د یوه پوځي مرکز په څیر د بمونو هدف وګرځاوه.

امریکایي یرغلګرو دا دواړه ستر جنایتونه د خپلو داخلي لاسپوڅو په همکاري او ملتیا تر سره کړل، ځکه هغوئ په دواړو پیښو کې د اشغالګرو له دغه نه ښنونکي جنایت څخه دفاع وکړه او په اوروز ګان کې وژل شوي ولسیان چې د هغوئ د تصویرونه په ټولو رسنیو کې نشرشول وسله وال مخالفین وبلل.

د اروزګان د پیښې د معصومو قربانیانو تصویرونه چې د هغوئ په جمله کې تنکي ماشومان او تورسرې هم لیدل کیدي د وحشي امریکایانو او د هغوئ د دروغجنو او بي ننګه مدافعینو د بي غیرتي او بي ننګي یو ښکاره ثبوت دی.

اوس پوښتنه داده چې امریکایي ځناور او د هغوئ دروغجن مدافعین به په رسنیو کې نشر- شوي د اروزګان د معصومو ماشومانو ژوندي تصویرونه او په کندوز کې د ښځینه زده کوونکو د ښوونځي تخریب څه ډول توجیه کوي؟

ایا ریښتیاهم په اروزګان کې د هغوئ په وحشیانه بمبارکې وژل شوي او ژوبل شوي ٦ کلن معصوم ماشومان او عمر خوړلې میرمنې وسله وال مخالفین وو؟

دا به کوم تعقل ومنې؟

همداراز امریکایي ځناور او دهغوی مختوري مدافعین به په کندوز کې د دوي له لوري د ملکي ښوونځي بمبارولو جنایت څه ډول توجیه کړي؟

ایا همدا ښوونځي چې د کندوز ښار په پنځه کیلو متري کې موقعیت لري ریښتیا هم د دوي په اصطلاح د وسله والو مخالفینو( طالبانو) کوم پوځي مرکز و چې د دوي له لوري په نښه کړل شو؟

ایا ریښتیاهم دا ښوونځی د وسله والو طالبانو د پوځي مهماتو زیرمتون و چې دوئ د هوایي برید په ترڅ کې له منځه یووړ؟

د کندوز او اوروزگان پیښې مشت نمونه خروار دي چې په دوو ورځو کې په پرلپسي توگه د امریکایي ځناورو او د هغوئ د بي ننگه ملاتړو لخوا رامنځته کیږي.

یواځې کندوز او اروزگان نه دی چې د اشغالگرو او دهغوئ د ملاتړو له وحشته کړیږي ؛ بلکې د هیواد لویشت لویشته خاوره د هغوئ وحشیانه جنایاتو شاهده او هره ورځ د هیواد په بیلابیلو سیمو کې په سلگونو افغانان د اشغالگرو او دهغوئ د ملاترو د جنایاتو قرباني کیږي.

هیڅ منصف ضمیر نشته چې له همدې وحشي- اشغالگرو څخه پوښتنه وکړي چې د ښوونځیو او ولسي سیمو بمبارول د نړیوالو په کوم قاموس کې د قانون د پلي کولو او امن ټینگولو معنی لري؟

ایا تاسو سوله او د امنیت ټینگښت دیته وایاست چې د بیوزلو افغانانو ختینې جونگړې په لیزریزو بمونو ورهوارې کړئ؟

ایا ستاسي د تروریزم پرخلاف مبارزه همدا ده چې د ښځینه زده کوونکو ښونځي د خپلو ړندو بمباریو هدف وگرځوئ؟

افرین دي وي پرتاسو او ستاسي پر حیواني تعقل! مختوري دي وي ستاسې بي ننگه ملاتړي!



# امریکا د خپلو وژل شوو عسکرو اعلان څو ورځې وروسته کوي

د امریکا پوځ اعلان کړی چې په افغانستان کې د وژل شوو امریکایي عسکرو خبر به تر څو ورځو ځنډ وروسته رسنیز کوي.

د رویټرز خبري اژانس د راپور په بنسټ په افغانستان کې د امریکایې ځواکونو قوماندان ویلي چې د نوې پالیسۍ له مخې د وژل شوو امریکایي عسکر د وژنې خبر به له څو ورځو ځنډ وروسته رسنیو ته لیږل کیږي.

دی وايي، لومړی د عسکر د وژل کېدو خبر د هغه کورنۍ ته ورکول کیږي او بیا به رسنیز کیږي، چې دغه کار څو ورځې نیسي.

د یادونې وړ ده چې په ۲۰۰۱ز کال کې پر افغانستان باندې له یرغل وروسته امریکا د وژل شوو عسکرو په اړه اعلامیه خپروله. اعلامیه کې به د پېښې سیمه او د وژل شوو عسکرو شمېر په گوته کېده، خو هویت، نوم او د پیښې دقیق ځای پټ ساتل کېده، چې په دې سره به په یادو سیمو کې د میشتو عسکرو کورنۍ په تشویش کېدلې.

د نوې پالیسۍ له مخې لومړی به د وژل شوو عسکرو کورنیو ته خبر ورکول کیږي او بیا به رسنیو کې اعلان کیږي.

راپور کې راغلي چې دغه پالیسي یواځې په افغانستان کې پلي کیږي، په نورو سیمو لکه عراق او سوریه کې به د پخوا په څیر په وخت رسنیو ته د مرگ ژوبلې خبر ورکول کیږي.

خو په امریکا کې د دفاعي چارو کارپوهان پر دغه پالیسۍ نیوکې کوي او وايي چې یاده پالیسي په افغانستان کې روانه جگړه نوره هم مبهمه وي او امریکایان به په دې نه پوهیږي چې په افغانستان کې څه تېرېږي.

د یادونې وړ ده چې امریکا په داسې حال کې د عسکرو د مړینې د نه اعلان پرېکړه کوي، چې افغانستان ته یې د ۴۰۰۰ نورو عسکرو لیږلو پرېکړه کړې.



# د اقصی کلابندي

## او داسلامي هیوادو دچارواکو مجرمانه چوپتیا

بشیر

دتیرې جمعې پـه ورځ اسرایـلي عسکرو دخپلو وحشتونو، ظلمونـو او سـتمونو پـه دوام دمسـلمانانو لـومړی قبلې(اقصـی مسجدته) دجمعې لمانځه اداء کولو لپاره ځوتنه روان ځوانـان پـه شهادت ورسول چې دهغوی دشهادت په غبرګون او ځـواب کې مسلمانانو دوه وحشي اسرایلي عسکر ووژل

ددې وروسته اسرایلي رژیم په دومره زیات وحشت لاس پورې کړ چې په مسلمانانو یې لومړی قبله بنده کـړه او دجمعې لمانځه ترتیبات یې بند کړل او مسلمانان یې په ډېر وحشت سره دمسجد څخه او ښـړل او هـم اقصی تـه د ټولې تللې لارې یې وتړلې ، په دې کـار سره دالقدس ښار پخوانۍ برخـه پـه مکملـه توګه دنورو برخو نه عملاً قطع شـوه پـه دې سره دمصر دالازهـر اسلامي پوهنتـون لـه لوري پـه یـوه وینا کـې وویـل شـول : چې داسرایلي عسکرو دغه ګام ښیي چې اسرایـلي دولـت فلسطین کئ دخپل واک غځولو عزایمو تـه دمشروعیت ورکولـو پـه موخـه دغه ډول نمایشي ترینګلی حالت درامنځته کولو څخـه د و سـېلې په حیث کار واخلي.

دتیرو اوولسیزو راهیسې اسرایل فللسطین کې په مسلمانانو باندې داسې ظلم او ستم نشته چې هغه یې نه وي ترسره کړی پـه دې لړ کې اسرایل دولت په ښکاره ټول بشري او نړیوال قوانین ترپښو لاندې کړي څـو ځـلـه یـې دملګـرو ملتونـو د پریکړلیکونو څخه سرغړونې کړي دغه وجه ده چې نـن ورځ دفلسطین مظلوم مسلمانان د زمکنۍ کړې پـه مـخ ترټولو مظلوم ، بې وسه، او بې دفاع ولس ګڼل ګېږي.

هغه تن چې دتاریخ او جغرافیې زده کړې کوي دهغه ته پـه القدس ښار کې دناروا یهودي دولت تاسیس او دهغـه وروسـته دهغه څلورخواوو غځولو وجوهات او لاملونـه ، دیـوې نیمې پیـړۍ وړانـدې زمکنیـو حقـایقو ، دبیلابیلـو سیمو او مختلفـو وختونـو او حالاتو مطالعه ضروري ده

لنډه داچې برتانوي ښکېلاک چې یـو وخـت دنړۍ ترټولو ستر سیاسي، پـوځي، اقتصادي او سوداګریز ځـواک ګڼل کېده دتیرې پیړۍ په لومړیو کې هغه یهود چې په نړۍ کې خوار، زلیل او درپه در خاورې په سر ګرځیـدل را یې وړل پـه منځنـي ختیـځ کې یې میشت کړل او ورته دیوې ټوټې زمکې ورکولو لپاره یـې منظم سازش وکړ، دکوم په نتیجه کې چې په ۱۹۴۸ز مي میاشت کې دملګـرو ملتونـو دسیوري لانـدې صـهیوني دولت جوړولوتـه رسماً اجازه ورکړل شـوه دهغـه وخـت راپـدیخوا دنړیوالـو کفـري ځواکونو دپلانونو او سازشونو په وجه اسرایل دیـو قـوي دولـت پـه بڼه راڅرګند شوی او لګیادی د پوځي، سیاسي او اقتصادي پلـوه دځان ځواکمنولو لپاره کوښښونه کوي کـه نـن دفلسطین اوسـنی زمکنـی مسـاحت دپخـواني سره پرتلـه شي نوجوتـه بـه شي چـې اسرایل په څومره لږ وخت کې دنړیوالو کفـري ځواکونـو پـه ملاتړ دفلسطین څومره سلنه خاوره غصب کړې؟

حال داچې دفلسطین په خاوره داسرایل دغاصب رژیم قبضه دقانون، اخلاقو او تـاریخ لـه پلـوه هـیڅ کـوم جـواز نلـري بلکـې دا یـوغیر منطقـي او نـه قـانع کـوونکی ګـام دی چـې لـه املـه یـې دفلسطین دخلکو ژوند دسختو ستونزو او ننګونو سره مخ دی

دیته په کتو سره دنړۍ بیطرفه کـړۍ داسرایـل داشغال پـه خـلاف غـږپورتـه کـوي او دفلسطین خـاورې اشـغالول دواقعیتونـو ښکاره سرغړونه بولي چې پـه دې لـړ کـې دایـو مشـال کـافي دی: درواني میاشتې په پیـل کـې دملګـرو ملتونـو دځـار لانـدې اداري یونیسکو یو ځل بیا دفلسطین په حـق غـږ پورتـه کـړ او اعـلان یـې وکـړ : چې په بیت المقدس بانـدې اسرایـل هـیڅ حـق نلـري چـې قبضه وکړي ځکه چې هغه دفلسطینانو ملکیت دی

څنګه چې بیت المقدس دمسـلمانانو لـومړی قبلـه او دربـیم مقـدس ځـای دی چـې دمکـي حـرم او مـدني حـرم وروسـته یـې مسلمانان خپل دربیم مقدس، مبارک، او محترم ځای ګڼي هـم دا

وجه ده چې یهود کوښښ کوي چې دمسلمانانو څخه دغه مقدس ، مبارک، او دافتخاراتو باعث روحاني مقام قبضه کړي هغه ځوک چې ددغه مقدس مقام ساتونکي او متوليان دي دنړيوالو دفشار په ترڅ کې يې له هغه ځايه او شړي

خو افسوس چې دمسلمانانو دغفلت ، ساده ګی او ناپوهی په وجه او اغيارو دموخو او ارادو سره سم کار کولو له امله يهود دومره زړورشول چې داقصی په ځای غواړي مزعومه سليماني هيکل جوړکړي دکوم لپاره چې په ۱۹۶۲ ز کې بيت المقدس داور اچولو په ناوړه سازش يې لاس پورې کړ او اوس غواړي دسايسي- اوتخنيکي ټيکنالوجۍ په مرسته اقصی مسجد (معاذ الله) ونړوي....

حيرانوونکې داده چې اسرايل دا هرڅه دملګرو ملتونو او نړيوالې ټولنې ترسيورې لاندې ترسره کوي حال داچې دغه ټولنه په نړۍ کې دملتونو او ولسونو ترمنځ ديوبل دين ته داحترام لرلو هم دا راز ديوبل زغملو او په خاصه توګه په کمزورو هېوادو نو دزبرځواکو دتيريو دمخنيوي په خاطر رامنځته شوې خو عملاً دنړۍ دزبرځواکو هېوادو دلاس آله ګرځيدلې هغوی يې دخپلو استعماري اهدافو لپاره دنامه او موقف نه استفاده کوي دغه وجه ده چې همدا نړيواله ټولنه دزبرځواک هېوادو په لمسون اوغوښتنه مسلمانان نړۍ ته دترهګرو په توګه معرفي کوي هغه مسلمانان چې دنړۍ دسترو هېوادو نه دخلاصون او ازادی لپاره مبارزه او جهاد کوي او خپل بشري حقوق او انساني ازادۍ غواړي نړيواله ټولنه هغوی ترهګر اعلانوي خوبل لورته هغه ځوک چې په رښتيا هم ترهګرې کوې انسانان وژني، ماشومان ډاروي ، دمسلمانانو په ښارونو غاصبانه قبضې کوي په هغوی يې سترګې پټې نيولي ...

په ورته توګه منځني ختيځ کې ورووستی نګونې او ستونزې او جنګونه په حقيقت کې داسرايل مورال تقويه کوي او يا په بل سپيناوي داسرايل په ځغورلو کې کليدي رول لري چې داستعماري هېوادو لخوا دپلان کړي سازش سره سم اسلامي هېوادونه پخپل منځي کشمکش او اخ وډب کې ښکېل دي چې دفرصت نه په ګټه اسرايل ورځ په ورځ خپل شوم عمليات مخ په وړاندې وړي او دمسلمانانو کلي او ښارونه دشوبلو او ټانکونو ترچينونو لاندې پايمالوي.

په نړۍ کې دهيڅجا لخوا داسرايل دظلمونو او ناروااوو په خلاف غږ نه پورته کېږي او نه داسرايل په مقابل کې څوک دفلسطينې مسلمانانو سره مرسته او کومک کولی شي، ځکه ملګرو ملتونو لخوا سملاسي هغه هېواد دبنديزونو سره مخ کېږي کوم چې دفلسطينانو سره دلومړنيو خوراکې موادو په برخه کې هم مرسته وکړي هيڅ هېواد نشي- کولی چې هغه دفلسطين دخلکو لاس نيوی وکړي خو په مقابل کې اسرايل حق لري چې دنړۍ دهر هېواد څخه وسلې واخلي او نوې ټيکنالوجي ترلاسه کړي، اتومي وسلې جوړې کړي چې په دې توګه داسرايل په وړاندې دفلسطينيانو لاسونه او پښې تړل شوي دي او اسرايل په ازادو لاسو دفلسطينيانوپه مری چړې ږدې او ذبحه کوي نو ر ددينه دمظلوميت حالت به څه وي ؟ له دې وجې دفلسطين مسلمان ولس ډېر مجبور او مظلوم ولس دی هغه په ډېرو عادي وسايلو لګيادي له خپل ځانه دفاع کوي او اسرايل دټانګونو او شوبلو په بريدونو د خپلې پراخيتا لپاره هيڅ ډول ناروا جارجيت نه دريغوي

نړيواله ميډيا هم داسرايل په پلوی نشرات کوي مسلمانان غندي او اسرايل نړۍ ته حق په جانب وړاندې کوي او کوښښ کوي چې دهرې پيښې دپړې مسؤليت په مسلمانانو واچوي او اسرايل نړۍ ته سپين ښکاره کړي خو نړيواله ټولنه دې په ياد ولري! چې دنړۍ مسلمانان حساس او زيرک دي ، داسلامي هېوادو دچارواکو پشان بزدله ندي هغوی دمسلمانانو اوسنی حالت په ځېر، ځېر سره ځاري او دلومړۍ قبلې خلاف داسرايل پرمخ زياتيدونکي جارحيت له امله مضطرب او پريشان دي وړاندې ددينه چې حالاتو واګې له لاسو ووزي ښه داده چې نړيوال ځواکونه دنړۍ دملتونو سره انصاف وکړي او هم داسلامي هېوادو چارواکې دې خپل کورني رقابتونه او جنجالونه پای ته ورسوي او خپل اصلي دښمن ته دې متوجه شي په دې ويلو کې حرج نشته چې داسلامي هېوادو دچارواکو دناسمو پاليسيو په وجه او دفلسطين ستونزې په اړه دپوره نه پاملرنې له امله دمسلمانانو ترمنځو دهغوی کردار مشکوک او مجروح دی داسلامي هېوادو چارواکي دمسلمانانو دحقوقو نه ددفاع په لړ کې مخلص او بيدار نه بريښي ، پکاردی هغړی دلومړۍ قبلې دتقدس او احترام پخاطر ديهودو په ضد را پورته شي او اقصی مسجد دې دديهودو د غاصبانه قبضې څخه وژغوري

# بې طالبه افغانستان نیمګړی دی

محمد زمان مزمل

ځینې ډلې ډېر ټیټ تصور لري، هغوی له امریکایانو سره ګډ افغانستان جوړولی شي ولې له طالب سره کډ افغانستان نه شي زغملی.

سیاست چې کله کله د خامو ډلو په وسیله تجربه شي همداسې پایلې لري، چې ملتونه په خپلو کی وېشي- او ډېر بد یې وېشي.

طالب که د پاکستان وسیله وګڼو نو مجاهدین تر هغوی زیات پاکستاني ول او مجاهدین باید د خبرو او شعارونو پر ځای خپلې سترګې خلاصې کړي.

کېدای شي ډېری پدې ځان قانع کړي چی طالب په جهادي او غیر جهادي ډلو کې تر نورو وحشی و هلته چې کلیو او کورونو ته یی اور ورته کړ او د خلکو باغونه یی له بیخه وایستل ولې همدغه عقده‌مند د ټول افغانستان د کلیو او بانډو د ورانونکیو سره لکه د خاله زامن یو ځای ندي ناست او دغو نورو یی پرون په کابل کې پرګنی او مخالفین په خپلو کی په کانتینرو کی وسول او د زندانیانو په سرونو یی میخونه ټک وهل.

طالب د ټولو لویو اشتباهاتو سره سره د دوو اشغالګرو سره د مقابلې افتخار هم لري او طالب مشران کابل کې د پیاوړی تسلط باوجود یو یي یوه ویلا او یو یی اپارتمان نلري.

دا چې طالب نن په غرو کی دی نورو په خپلو کې کابل او د نورو ولایتونو هوارې او غرونه یی په یو مافیایی نظام کې تقسیم کړي او په هېواد کې هره ورځ کمزوری پرګنی یا کورونه یا هم خپلې ځمکی د لاسه ورکوي.

د طالب په غیاب کی حکومت قومي ډلو ویشلې ده او نور هم د دغه نظام غیر متمرکز کېدل غواړي.

د طالب په غیاب کې په شمال، کندز، تخار او نورو ولایتونو کی نه څوک د لورګانو خاوندان دي او نه هم د زامنو.

له بچه‌بازی نه یی ملګري ملتونه شکوې کوي او د نابالغو نجونو تښتول پکې یوه عنعنه جوړه ده.

د طالب په راتګ د قومي چاپه اچونکیو څادر ټولېږي، شراب خواره امرین او سوداګر تښتي او د مافیایي غلو ټانکونه سستېږي.

طالب که په افغانستان کې که د سیاسي پروسې برخه شوه امریکا ته به پاتې کېدو پلمې ختمېږي او دغه وزیران او والیان چی زامن او ورونه یی د امریکا ډالر یی د خپلو انجیوګانو په زریعه له موسسو او ادارو ټولوی دا به خود حساب ورکوي او یا به کېبل خوري.

د ملت او ټول ملت دغه غوښتنه ده چې طالب دې راشي د جنګ په ځای چی نور یی د دوی په نامه کوي او ملکی کسان وژني د دغه عملیاتو په ځای دې دا ملت له دغو ظالمانو وژغوري چی د لورګانو په ودونو کی یی ځمکه او اسمان کډېږي او په لکهاو ډالر مصرفوي.

دغه افغانستان چې یواځې د سرکونو او لویو ښارونو افغانستان دی دا به د طالب په راتګ تر دروازه، تر خم آباده، تر مارجې او تر ډنډ پټان لوی شي. د کلیو خلک به پکې د ښاري شرابخورو له ظلمه خلاص شي او د ښار پرګنی به په کې له هغه کلیوالو افراطیانو وژغورل شي چې هر ښاري او د دریشي- اغوستونکي ورته کافر ښکاري.

افغانستان له دغو نه چی پلرونه یی په دفترو کی ظلم او فحشا کوي او زامن یی په امریکایي سرونو او تنګو پتلونونو په کوڅو د مظلومو خلکو د عزت او ناموس دښمنان دي افغانستان له هغو هغه طالب ژغورلی شي چې علی الاقل د پرګنو د ناموس او پت اندېښنه ورسره وي او د سولې او ثبات په قیمت یوه شي.

بی طالبه افغانستان ځکه نیمګړی دی چی د امریکا د حمایې او ملګري له توره یواځې د طالب په راضی کېدو او ملګري ژغورل کېږو او هلته بیا جنګ پکې ریښتیا په فتوا درېږي.

اوس نو هوښیار طالب ته پکار دی چې په چوپه خوله او یو طرفه جنګ وتلیو امریکایانو ته د بیا راتلو پلمې برابرې نه کړي.

# پـــدر و مـــادر

## دو گوهر نایاب

احمدحسن

پـــدر و مـــادر دو گـــوهر نایـــاب و دونعمت گران بها هستند که خداونـد آنهـا را وسیله‌ی رشد و نمو ما در دنیا قرار داده است. خداوند متعال در قبـال ایـن زحمت آنان نیکی به آنها را سبب کامیابی در دنیـا و آخرت قرار داده است. خداونـد رضـایت خویش را وابسته به رضایت آنـان قـرار داده است؛ چنانکه پیامبر اسلام صلی الله علیـه وسلم می‌فرمایـد: « رِضَی الـرَّبِّ فـی رضی الوالد، و سَخَطُ الـرَّبِّ فـی سخط الوالـد»؛ خوشـنودی پرودگـار منـوط بـه خوشـحال نمودن والدین و ناراضی ایشـان نیـز سـبب نارضـایتی او تعـالی اسـت. وقتـی سخن از احسان و نیکی به پدر و مادر بـه میـان آیـد شاید، افـرادی از مـا سر شرمنـدگی پـایین بیاوریم که واقعا حق آنها را ادا نکـرده‌ایم. این را باید دانست که حـق آنهـا ادا شـدنی نیست، اما مقوله‌ای هست: آب دریا را گـر نتوان کشید هم بقدر تشنگی بایـد چشید. شـاید افـرادی را مشاهده نمـودیم کـه بـا نافرمـانی والـدین در دنیـا دچـار مشکلات بزرگ و جبـران نـاپزیری شـده و آرامش از زندگی آنان رخت بسته است، اما در مقابـل نیز افرادی یافته می‌شود کـه بـا احسـان و خدمت رضایت آنها را جلب نمـوده، لـذت زنـدگی را چشـیدند؛ ایـن نکتـه را بایـد دانست که والدین بالاترین گنج روی زمین هستند. دیـر یـا زود ایـن گـنج زیـر زمـین خواهـد رفت و آن وقت اسـت کـه دیگـر پشیمانی سودی ندارد. همـین دامـن مـادر تربیت گاه انبیاء، اصحاب، اولیاء، مجـددان مجاهدان است. خلاصـه تمـام موفقیت‌ها مدیون دامن مادران و تربیت پدران است. لـذا بـر آن شـدیم تـا نکـاتی را در رابطـه بـا حقوق پدران و مادران یـاآور شـویم؛ از ایـن جهت ۳۵ نکته از آداب چگونگی برخورد با والدین را تقدیم به شما خواننـدگان گرامـی می‌کنیم. - در محضر والدین سعی ما بر آن باشد که خود را با چیزهای هم‌چون مبایل مشـــغول نســـازیم؛ - هنگـــامی کـــه آنها سخن مـی گوینـد سـاکت بمـانیم تـا سخن آنها به پایان برسـد؛ - گفتـار آنهـا را در امـوری کـه بـه مـا مشـوره مـی دهنـد بپذیریم؛ - باسخنان آنها کنار بیاییم گرچـه سخنانشان بـر مـا سخت بگـذرد، البتـه در مواردی که نافرمانی خدا نباشند؛ - همیشه به آنان تواضعانه تؤام بـا محبت بنگـریم؛ - خوبی‌های آنهـا را کـه نسـبت بـه مـا انجـام داده اند، همیشـه بـه یـاد داشـته باشـیم؛ - برایشــان ســخنانی را بگــویم کــه باعــث خوشحالیشــان می‌شـود؛ - سـعی کنـیم خبرهای ناراحت کننده را به آنان نگوییم؛ - از دوستان پدر و مادر به خوبی یاد کنیم؛ - همیشه از خدمات آنان نسبت به خـود مـان یاد کنیم؛ - به سخنان آنان خوب گوش فـرا دهیم و اگر چه تکراری هم باشند؛ - از یـاد آوری چیزهای گذشته‌ای که باعث رنجش والدین می‌شود دوری کنیم؛ - از گفتن حر فهای جانبی در جلوی والدین بپرهیـزیم؛ - در به هنگام نشستن با پـدر و مـادر ادب و احترام را رعایت کنیم؛ - آنها را کوتاه فکـر تصور نکنیم؛ - در هنگـام سخن گفتنشـان سـعی کنـیم سـخن آنـان را قطـع نکنـیم ، گرچه زیاد هم صحبت بکنند؛ - بادر نظـر گرفتن سن بالای آنان فرزندانمان را بـا آنـان یک جا نخوابانیم؛ زیرا این کار سبب اذیت و آزارشان می‌شود؛ - در جلویشان از تنبیـه کردن نوه‌های آنها پرهیز کنیم؛ - به سخنان دل سوزانه واندرزهای آنان کاملا گوش فـرا دهیم؛ - در مجالس برای آنها جایگاه والایی قائل باشیم؛ - از بلند کردن صدای خود بـر پـدر و مـادر بپرهیـزیم؛ - جلـوتر از آنهـا جـایی نـرویم و در راه رفـتن هـم از آنهـا سبقت نگیریم؛ - قبل از آنها غذا نخوریم؛ - در هنگام نگاه کردن به آنها زل نزنیم؛ - به آنان افتخار کنیم گرچه دارایی مقام والایی نباشند؛ - پای خود را بـه سوی آنـان دراز و پشت هم به آنان نکنیم؛ - کاری نکنـیم کـه دیگران به آنها فحش بدهنـد؛ - همـواره بـه آنهـا دعـای خیـر بکنـیم؛ - در جلـوی آنهـا اظهار خستگی و نـاراحتی نکنـیم؛ - اگـر از آنهـا اشـتباهی سر زد، بـه تمسـخر آنـان نـبردازیم؛ - قبـل از اینکـه از مـا خـدمتی بخواهند، به خدمت آنان همت گماریـم؛ - از آنها قطع رابطـه نکنـیم بلکـه همـوراه بـه زیارت آنان مشرف شویم؛ - الفـاظ نیکـو در سخن گفتن با آنها کار ببریم؛ - با اسمی که دوست دارند، صدایشان بزنیم؛ - آنهـا را در هر مورد برهمه ترجیح دهیم.

# أعمالكم عُمالُكم

## ستاسو عملونه ستاسو امیران دي

*Shahidullah Shahid*

شیخ ادریس صیب دسیمې دیو مخور عالم د خولې یوه قیصه په خپل بیان کې ذکر کړې وایی:

بیت المقدس ته مې د سفر نیت وکړو تر څو پکې د لمونځ کولو افتخار لاسته راوړم، سفر می پیل کړلو، دشپې ناوخته د بیت المقدس ښار ته ورسیدم؛ هڅه مې دا وه چې د مسجد تر څنګ یو هوټل کې شپه تیره کړم، د سهار لمونځ باید په همدلته ادا کړم، سهار شو لاړم مسجد ته د یو ښه انتظار وروسته مې له خلکو وپوښتل د دې مسجد دروازه سه وخت خلاصیږی؟

یو کس جواب راکړو وایي لږ انتظار وکړه امام راځي.

له ښه څنډ وروسته، د مسجد مخ ته موټر ودریده؛ یو پتلون پوښلی، نیکټایي په غاړه ځوان ترې په داسې حال را ښکته شو چې سیګرټ یی بل لاس کی نیولی!

د مسجد دروازه یې خلاصه کړه، بیدون له دې چې سیګرټ ووژني، مسجد ته داخل شو!

شیخ صیب وایی:

په ډیر تعجب مې د سړي نندارہ کوله، له ځان سره مې همدا کلمه زم - زمه کوله چې ولې دبیت المقدس خادم دومره بی اهله او پس انسان دی!

خو خبر نه وم، چی دا دبیت المقدس مؤذن دی، نه خادم! اذان یې شروع کړلو!

سیګرټ یې بل لاس کې نیولی؛ کله چې الله اکبر وکړي وروسته له سیګرټه یو دود کش کړي، اذان یې په همدې طریقه ختم کړو!

هغه ویل: له ډیره خپګانه ګنګس شوم هیڅ می نشو ویلی، یواځې ننداره راپاتی وه!

وایی: کله چې امام راغی دهغه هم سیګرټ لاس کی دی له ممبر تر څنګ، سیګرټ دانی پرته ده! په هغې کی ټک ورکړ، مړیې کړ! جمعې ته مخکې شو، درې په درې مو جمعه وکړه..........!

یادونه: کټ مټ مې د شیخ ادریس صیب خبرې راخیستي یو توری مې هم له ځانه نه دی لیکلی، ما وویل: چې داسی حال وي ولې به اسرائیل په اقصی کی لمونځ نه بندوي!

## د ننګرهار ولایت له بیلابیلو سیمو څخه
## د فرهنګي کمیسیون د استول شوي مطبوعاتي پلاوي کتنه

حقمل ضیاء

# هغه څه چې مونږ ولیدل

د روان ۱۴۳۸ هق کال د شعبان او رمضان په میاشتو کې مو د اسلامي امارت د فرهنګي چارو کمېسیون له لوري د فرهنګي فعالیتونو لپاره د ننګرهار ولایت ته یوسفر درلوده.

په لومړي سر کې سفر مو د حصارک له ولسوالۍ پیل او ورپسې د شیرزاد ، خوګیاڼو ، سرخرود ، پچیر اګام او چپرهار ولسوالیو کې له موجودو بېلابېلو نظامي او ملکي اداري واحدونو او د مجاهدینو د حاکمیت په سیمو کې له بازارونو او مېلو څخه لیدنې درلودې ؛او همدارنګه د یادو ولسوالیو په بېلابېلو سیمو کې مو له علمای کرامو ،قومي مشرانواو ولسي- خلکو سره د دوی په سیمو کې د روانو چارو ، د دوی د ورځنې ژوند او په مفتوحه ساحو کې د مجاهدینو د رغندو فعالیتو په اړه له دوی سره مرکې وکړې.

دا چې په یادو ولسوالیو کې ډېر داسې واقعیتونه موجود وو چې د رسنیو له سترګو پټ پاتې دي ، او یا هم اجیرې رسنۍ هر څه منفي تبلیغوي ، او هیوادوال او نړیوال د مجاهدینو د حاکمیت په سیمو کې د روانو چارو په اړه پوره او صحیح معلومات نه لري ؛ نو په همدې اساس غواړم چې د خپل سترګو لیدلی حال درته د وس تر کچې په څو نقطو کې تشریح کړم.

**په یادو ولسوالیو کې د مجاهدینو حاکمیت**

« د حصارک ولسوالي : د حصارک ولسوالي چې د جلال اباد له ښاره نسبتا لرې پرته ولسوالي ده ؛ د کابل او لوګر ولایتونو سره ګډه پوله لري.

په یاده ولسوالۍ کې مجاهدین کامل حاکمیت لري او د ګوډاګي اداري شتون د ولسوالۍ تر مرکز  او څو پوستو پورې محدود دی ، د څه باندې ۵ کالونو را دېخوا د یادې ولسوالۍ ځمکنۍ لارې د ګوډاګیانو په مخ بشپړ تړل شوي دي ، او دوی خپلو مرتزقه عسکرو ته د هوا له لارې اکمالات کوي.

په یاده ولسوالۍ کې مجاهدین د حکومت مېشت سیمې او پوستو څخه ګرد چاپېره منظم او دوام داره خطونه لري او ګوډاګیان یې په خپلو پوستو کې محصور ساتلي دي.

« شیرزاد ولسوالي : د شیرزادو ولسوالي د خوګیاڼو او حصارک ولسوالیو تر منځ پرته هواره ،سر سبزه او د طبعي ښکلا لرونکې ولسوالي ده.

په یاده ولسوالۍ کې مجاهدین پوره حاکمیت لري د ګوډاګیانو شتون په کې د ولسوالۍ تر انګړ پورې محدود دی چې شاوخوا یو کیلومتره مربع ساحه به تشکیلوي په یاده ولسوالۍ کې د ګوډاګیانو شتون بشپړ سمبولیک دی.

د دې ولسوالۍ یو تن جهادي مسؤول راته وویل چې که مونږ ووایو چې له مونږ سره په شیرزادو کې ۳۰۰ تنه اجیر عسکر بندیان دي نو له حقیقته لرې به نه وي ؛ ځکه چې دغه عسکر د ولسوالۍ له ودانۍ څخه بهر نه شي را وتلی ، له کلونو را دېخوا دوی ته د مرستو رسونې ټولې ځمکنۍ لارې د دوی په مخ تړل شوي دي او دوی په میاشتو دې ته انتظار باسي چې چورلکې ورته راشي او دوی تبادله کړي او یا هم دوی ته اکمالات ورسوي.

« د خوګیاڼو ولسوالي : د خوګیاڼو ولسوالي د ننګرهار او بیا د هیواد په سطحه یوه لویه ده چې پراخ نفوس او پراخه سیمه په بر کې نیسي.

د یادې ولسوالۍ په څلورو خواوو او په پراخو سیمو او ګڼ نفوسو ساحو کې مجاهدین سلطه لري او ګوډاګۍ اداره د ولسوالۍ مرکز ، کرې بازار او د خوګیاڼو جلال اباد عمومي لاره باندې واک لري.

« د سرخرود ولسوالي : یاده ولسوالي د جلال اباد ښار سره جوخت د تورغر په لمنو کې پرته سر سبزه ولسوالي ده.

د یادې ولسوالۍ په اکثرو سیمو کې د مجاهدین و شتون موجود دی په ځانګړي توګه په هغو سیمو کې چې له تورغر سره جوخت پراته دي.

په یاده ولسوالۍ کې ګوډاګۍ اداره د خوګیاڼو او جلال اباد په پاخه سرک واک لري چې هلته هم وخت ناوخته د مجاهدینو له کمینونو او بریدونو سره مخ کېږي.

« د پچیراګام ولسوالي : یاده ولسوالي د سپین غره په لمنو کې پرته ده چې هواره او غریزې سیمې لري؛ د یادې ولسوالۍ په اکثرو سیمو کې مجاهدینو حضور لري او خپل جهادي بهیر ته ادامه ورکوي او ولسي خلک یې هم د اسلامي امارت کامل ملاتړ کوي.

« د چپرهار ولسوالي : یاده ولسوالي هم د جلال اباد ښار سره جوخت او په ډېره نږدې ساحه کې پرته ده او نسبتا هواره مناطق لري.

په یادې ولسوالۍ کې مجاهدین په ګڼو سیمو کې سلطه لري ؛ خو دا چې یاده ولسوالي له ښاره ډېره جوخته پرته ده او ګوډاګي اداري له لوري هم وار په وار عملیات تر سره کېږي ؛ نو په همدې سبب په ځینو سیمو کې یې هیڅ لوری هم د خپل دایمي حضور ادعا نه شي کولی.

په مجموع کې ویلی شو چې په یادو شپږ واړه ولسوالیو مجاهدین پراخه حاکمیت لري ، ولسي- سیمې مجاهدینو سره دي ، او همدارنګه په یادو ولسوالیو کې مجاهدین له یوې ولسوالۍ بلې او له یوې سیمې بلې سیمې ته ازادانه په موټرو کې تګ راتګ کوي او په دې برخه کې هیڅ قسم مشکیلات نشته.

د تعلیمي ادارو په برخه کې

په یادو ولسوالیو کې د نسوانو او هلکانو د ګڼو مدرسو تر څنګ په ټولو سیمو ښوونځي او حتی تعلیمي انسټیټیوټونه فعال دي او د اسلامي امارت د تعلیم او تربیې کمېسیون د اصولو مطابق خپل فعالیتونه تر سره کوي .

مونږ هم له لاندې تعلیمي ادارو څخه لیدنه وکړه.

☆ د توتو لیسه: یاده لیسه د شیرزادو ولسوالۍ په توتو سیمه کې موقعیت لري مونږ د توتو لیسې ته په داسې حال کې لاړو چې مونږ سره د همدې ولسوالۍ د تعلیم او تربیې کمېسیون مسؤل عثماني صاحب هم ملګری وو.

یادې لیسې د ۵۷ تنه ښوونکو په شمول ٦١ تنه پرسونل او شاوخوا ۲۵۰۰ تنه زده کوونکي درلودل چې په ۴۴ شعبو کې یې زده کړې کولې.

یادې لیسې د ښایسته تعمیر تر څنګ منظم لابراتوار او کتابتون هم درلود.

☆ د زاوې لیسه : یادې لیسې د خوګیاڼو ولسوالۍ د زاوې په سیمه کې موقعیت درلود؛ د ۲۰ تنه اداري او تدریسي- پرسونل او شاوخوا ۱۰۰۰ تنه زده کونکو په کې موجود ووا تیر کال یې ۴۴ تنه فارغین درلودل ؛ د همدې لیسې له ښوونکو او زده کونکو سره موتفصیلي ناسته درلوده.

☆ د کمبو لیسه : یاده لیسه د خوګیاڼو ولسوالۍ د وزیرو په سیمه کې موقعیت لري.

۹۶۳ تنه زده کوونکي يې درلودل او په ۲۰ شعبو کې يې زده کړې تر سره کولې او همدارنګه ۲۸ کسه اداري او تدريسي تشکيل يې درلوده.

همدارنګه يادې ليسې د منظم لابراتوار ترڅنګ يو کتابتون هم درلوده چې ګڼ شمېر کتابونه په کې موجود وو.

« د ادوړ ديني مدرسه : يادې مدرسې د خوګيانيو ولسوالۍ د بر بيار د ادوړ په سيمه کې موقعيت درلود .

د يادې مدرسې سرپرستي د مشهور جهادي ادب ستوري نېک مل په غاړه وه ؛ دغه مدرسه شه فعاله او د ۵ تنه استاذانو له لوري د حفظ ، ناظرې او د فنونو په برخو کې شاوخوا ۱۵۰ تنه زده کونکو ته تدريس کېده.

« د خزر بابا ليسه : يادې ليسې د خوګيانيو ولسوالۍ د خوازه خيلو په سيمه کې موقعيت درلوده؛ او ۱۹ کسه يې اداري او تدريسي پرسونل يې درلود.

په يادې ليسې کې ۵۱۳ تنه هلکانو او ۱۷۲ تنه نسوانو زده کوونکو ته په جلا ځايونو کې د جلا استاذانو له لوري تدريس کېده.

« د سورډاګ ليسه : يادې ليسې د خوګيانيو ولسوالۍ د خوګي په سيمه کې موقعيت درلوده ؛ چې ۲۸ ته اداري او تدريسي پرسونل يی درلوده او سلګونو تنو زده کونکو په کې خپلې زده کړې پرمخ وړلې.

« د زاوې مدرسه : يادې مدرسې د خوګيانيو ولسوالۍ د زاوې په سيمه کې موقعيت درلوده او د حفظ او ناظرې په برخهکې د ۴ تنه استاذانو له لوري لسګونو تنه زده کونکو تدريس کېده.

د تعليمي ادارو په اړه لاندې څو ټکو ته اشاره کوو.

☆ په يادو ولسواليو کې مونږ داسې کومه مدرسه يا هم ښوونځی ونه موند چې د مشکيلاتو په سبب دي تړل شوی وي.

☆ په ټول ښوونځيو کې د اسلامي امارت تعليمي نصاب تطبيق کېده او د تعليم او تربيې د کمېسيون د لايحې مطابق تقسيم اوقات چلېده.

☆ د امنيت له مخې زده کوونکي او ښوونکي خوشحاله وو او په ډاډمنه فضا کې يې خپلې چارې پرمخ وړلې.

تعليمي اداري د کميت او کيفيت له مخې برابرې وې ؛ چې يو ښه مثال يې د کانکور په ازموينو کې لوړو زده کړو ته د همدې سيمو د اکثرو زده کونکو کاميابيدل دی.

د ښوونځيو تر څنګ د ديني مدرسو تعداد هم کافي زيات وو.

## د صحت په برخه

په يادو ولسواليو صحي مراکزو هم ښه په رامه او ډاډمنه فضا خپل کارونه تر سره کول او مظلومو هيوادوالو ته يې خپل خدمات وړاندې کول.

مونږ هم له لاندې صحي مراکزو څخه ليدنه کړه.

« د توتو اساسي روغتون : ياد صحي مرکز د شيرزادو ولسوالۍ د توتو په سيمه کې موقعيت درلوده ؛ او د او پي ډي ، مور او ماشوم ، جراحي ، او سوی تغذي د مخنيوی په پرخو کې يې فعاليتونه ترسره کول.

« د وزيرو پيره خيلوصحي مرکز :ياد مرکز د خوګيانيو ولسوالۍ د وزيرو پيره خيلو سيمه کې موقعيت درلوده .

ياد روغتون د ناروغانو لپاره د بستر تر څنګ د لابراتوار ، د وينو د تبديلی او همدارنګه په ګنو نورو برخو کې يې مريضانو ته خپل خدمات وړاندې کول.

« د زاوې اساسي روغتيايي مرکز : ياد صحي مرکز د خوګيانيو ولسوالۍ د زاوې په سيمه کې مېشت وو ؛چې د ۸ تنه پرسونل له لوري يې چارې رواني وې.



په ياد روغتون کې د لابراتوار ، ولادي نسايي ، تبرکلوز او همدارنگه په گڼو نور برخو کې د تداوی سهولتونه موجود وو.

**له مېله ځايونو او بازارونو څخه ليدنه**

مونږ د يادو ولسواليو له جملې څخه د شيرزاد ولسوالۍ د توتو سيمې مېلې او د خوگيانو ولسوالۍ د نکوړخيلو د ډنډو او وزيرو د ابکو صاحب سيمو مېلو ته لاړو ، چې په يادو مېلو کې د همدې سيمو د اوسېدونکو تر څنگ د ننگرهار ولايت له بېلابېلو ولسواليو او سيمو څخه او حتی د جلال اباد له ښاره په کې زرگونو خلکو برخه اخيسته.

دلته هر قسم سوداگانې خلکو تـه ميلاوېدل او دکانـدارانو او سوده اخيستونکو په کې د امن او ارامي په ډاډمنه فضا کې پېر او پلور کاوه.

مونږ همدارنگه د سرخرود ولسوالۍ د بالاباغ او د حصارک ولسوالۍ د علي شيرخيلو له بازارونو څخه هم لېدنې وکړې.

په يادو بازارونو کې دکاندارانو په امن او امان سره د خپلې دکانداری کولې او هيواد والو هـم پـه ډاډمنـه فضا کې خپل سوداگانې اخيستې.

**د ننگرهار ولايت له معسکر څخه ليدنه**

مونږ د همـدې ولايـت د نظامي معسکر د زده کوونکو د لومړي درو د فراغت په مراسمو کې شموليت وکړ.

ياد معسکر چې په نوی او تازه تأسيس شوی وو او دا يې لومړۍ دوره وه چې فارغان يې ورکول.

د معسکر فارغينو چې تعداد يې ۱۵ تنو ته رسيده د ۱۵ ورځو په ترڅ کې يې د مختلفو اسلحو د استعمال د طريقو تر څنگ يې د مختلفو جنگی مهارتونوپه اړه زده کړې تر لاسه کړې وې.

**د ننگرهار ولايت له محبس څخه ليدنه**

مونږ د ننگرهار ولايت داسلامي امارت عمومي محبس ته لاړو چې په دې محبس کې د لسگونو تنه بنديانو ساتنه کېده ؛ چې په مختلفو جرمونو کې تورن وو.

بنديانو په زندان کې دوی ته د برابر شوو سهولتونه په اړه خوښي ځرگنده کړه.

بنديانو ته په منظمه توگه د ديني او تر بيتي درسونه کېدل څو له زندان څخه د خوشې کېدو وو وروسته دوباره بيا خپلو بدو عملونو ته را ونه گرځي.

**له بې وزلو سره مرسته**

مونږ د خوگيانو ولسوالۍ د ابکو صاحب په سيمه کې د شهيدانو د کورنيو او همدارنگه له بېوزله خلکو سره د خوراکي موادو د مرستې لـه هغه بهيـر هـم ليدنـه وکـړه چـې د همـدې ولايت د شيرزادو د ولسوالۍ د مسؤول محترم نېک محمد رهبر له لوري په لار چول شوی وو.

د مرستو دغه بهيـر د يـادې علاقـې د مالداره او وس لرونکو خلکو په مالي ملاتړ سلگونو کورنيو تـه ترتيـب شوی وو چې ؛ اړو کورنيو ته د نغدي روپيو تر څنگ د ۲۱ توکه خوراکی او د کورني ضرورت توکيو مرسته وشوه.

اړو خلکـو لـه دوی سره د شـوو مرسـتو پـه اړه ډېـر زيـات خوشحاله وو او اسلامي امارت يـې د زړه لـه کومې دوعـا گـانې وکړې.

# امریکا او افغاني جینکۍ

ابو یاسر افغان

له تېرو څو ورځو راهیسي په رسنیو کې دا یو خبر ډېر زیات ترسترګو کېږي چې ۵ تنه افغاني انجوني د هرات له ولایت څخه د ټرمپ په ځانګړي فرمان امریکا ته یوړل شوې، یعني د ټرمپ په امر امریکایي سفارت ویزې ورکړې او د دې انجونو په هکله ویل کېږي چې په امریکا کې به د روباټ جوړونې په ورکشاپونو کې خپله وړتیا وښيي!! د دې خبر په خپرېدو سره په ټولنیزو رسنیو کې د ډیموکراسۍ پلوو او اسلامي فکر لرونکو ترمنځ سخت نظرونه تبادله شول او لا هم دغه موضوع توده ده.

یوې خبرې ته مو پام شته؟ هغه دا چې بي بي سي د نړیوالې دجالي رسنۍ په توګه دغه ډول خبر ته زیات پوښښ ورکوي، زیات یې خپروي، نورې امریکایي رسنۍ هم دغه ډول خبرونه سپانسر کوي، تر څو په دې ډول سره نوي افغان نسل ته دغه کړنه

یو ډول پرمختګ وښايي او نور خلک هم ورته وهڅوي، تر څو خپلې خوېندې او لوڼې امریکا ته د خدمت لپاره ولیږي، دا چې موږ او تاسې الحمدلله مسلمانان یو، افغان ملت ۹۹.۹٪ سلنه مسلمانان دي، نو دا ډول کړنې په واقعیت کې لویه بې غیرتي ده، چې د مسلمان افغانستان نه دې، تنکۍ انجوني د امریکایي ولسمشر په ځانګړي فرمان امریکا ته ولېږل شي، هغه که د هر قوم، هرې ژبې او ولایت اوسیدونکي وي یا د هرې طبقې څخه وي، خو نوم ورپورې د افغانانو دی، نړیوال یې د افغان انجونو په نوم پیژني، نو دا تور داغ هم د ټول افغان ملت پر تندې لګیږي، هیله ده چې افغان ولس نور دغه ډول شیطاني کړنو ته اجازه ورنکړي، عموماً زموږ افغانان او بیا پښتانه په خپل دین کلک ولاړ دي، له دووسۍ او بې ننګۍ یې نفرت دی، حتی تر دې چې د خپل کور لوري ته د چا د دېرې، حجرې، دوکان دروازه او د

خپل ګاونډي د کور کړکۍ هم نه پرېږدي، ځکه دا کار ورته د خپل کور او عزت سپکاوی ښکاري، همداسې د خپلو خویندو میندو په هکله د یو نامحرم سړي عادي خبره هم نه شي زغملی، پاتې خو لا امریکا ته د انجونو لیږل دي، دغومره بې غیرتي خو واقعاً د تأسف وړ ده البته بیا هم دا ویل ضروري ګڼم چې دا انجوني هم د حقیقي مسلمانو افغانانو لوڼې نه دي بلکې د ایمان پلورونکو چارواکو لوڼې دي.

که وګورو نو کمونیستي فکر لرونکو کسانو هم دغه ډول مردودي کارنامې ترسره کولې چې پایله یې د وخت د کمونیستي رژیم په ذلیل شکست او شرمېدلې سقوط تمامه شوه، داځل چې امریکایي اشغالګر راغلي، نو غلامانو یې په غلامۍ کې خپل عزتونه بیا نیلام کړل، لوبو، فلمونو، مؤسسو، راډیوګانو، تلویزیونونو او دادې بلاخره یې د

نړیوالو سیالیو په موخه امریکا ته هم خپلې لونې ولیږلې او په ډېر ویاړ سره وایي چې موږ د نړۍ سره سیالي کوو، هوکی سیالي ده خو په بې غیرتۍ او پخپلو عزتونو د تجارت په ډګر کې، هسې خو هر د عقل څښتن چې لږ هم ایماني جوهر ولري، په دې پوهیږي چې د بشریت قاتل او د وخت فرعون ټرمپ د افغاني انجونو په ور غوښتلو سره څه غواړي او څه هدف لري او دا هم معلومه خبره ده چې امریکا د افغانستان د پرمختګ سره هیڅ علاقه نه لري، نه ورته ضرورت لري، نه یې ملاتړ کوي او نه هم د امریکا مرستې بې غرضه دي، بلکې امریکا د نړیوال کفر د سرخېلې په توګه غواړي چې د افغانستان نه خپله دایمي مستعمره جوړه کړي، د نظامي یرغل تر څنګ یې پر افغانستان فکري یرغل هم کړی او د زرګونو رسنیو پر مټ هڅه کوي چې دلته عیاشي، فحاشي، بې دیني او بې غیرتي عامه کړي، امریکا غواړي چې افغانان په داسې مرضونو اخته کړي چې د ننګ او غیرت جنازه یې ووځي او بیا په آرامه توګه پرې خپلې طرحې یو پر بل پسې عملي کړي.

افسوس د دې خبرې دی چې یو شمېر افغانان د صلیبي او یهودي رسنیو له تبلیغاتو دومره متأثره شوي چې اوس یې د بې غیرتۍ په پورته ذکر شوي اقدام نه دا چې ایمان او وجدان راویښ نه شو، بلکې پر دغه کړنه فخر هم کوي او نړۍ سره د سیالۍ لپاره مؤثر پرمختګ یې بولي، هوکی امریکا د همدغه مبتذل فکره غولیدلو افغانانو څخه زیات کار اخلي، دوی ته یې یو اندازه مادي امتیازات منلي او دنده یې ورته سپارلې چې د امریکایانو هر اقدام ته به د پرمختګ نوم ورکوي او ټوله توجه به یې پر دې خبره متمرکزه وي چې څه ډول دلته په افغانستان کې د بې حیایۍ او بې دینۍ کمپاین بریالی شي.

موږ هیڅکله د پرمختګ او تعلیم دښمني نه کوو، خو د تعلیم او پرمختګ تر نامه لاندې د بې عزتۍ او بې غیرتۍ له دغه ډول کړنو څخه نفرت کوو، لکه چې مخکې موارد مو ذکر کړل په دغو ډګرونو کې ښځو ته زیاته ونډه په همدې هدف ورکړل شوې ده، چې تر څو د بې غیرتۍ دود رایج کړل شي، لکه د کمونیستانو د وخت غلام ذهنیته خلکو به چې روسیې ته د انجونو استول پرمختګ باله، کټ مټ نن د امریکایي ډیموکراسۍ امریکایي زیره خواره چارواکي دغه مبتذلو او حیا وژونکو اقداماتو ته پرمختګ وایي، له مخکې لا موږ افغانان د سیماثمر، ملالۍ جویا، حبیبه سرابي، شکریه بارکزۍ او... په څېر فاحشو څخه تنګ راغلي یو، دا دی د نورو دغه ډول فاحشو دروزنې پروګرامونه هم روان دي، زه نه پوهیږم چې د ستارۀ افغان فاحش پروګرام خپل کار وکړ او که هندي، ترکي او روسي سریالونو د ځینو خلکو غیرتونه وسوځول چې نن امریکا ته د تنکیو پیغلو په استولو فخر کوي؟! امریکا که د افغانستان د پرمختګ ملاتړې وای په دا ۱۶ کالو کې به یې دلته زرګونه رغوونکي او اساسي پروژې پلي کړې وې، تعلیمي اداري به یې جوړې کړې وې، د تلویزیونونو او راډیو ګانو خو یې سم باران وکړ، مګر تر اوسه یې یوه پروژه هم څوک نه شي ښودلی چې هغه دې د افغانستان د پرمختګ په موخه تر کار لاندې نیول شوي وي، خو بس دا ۱۶ کاله یې د ښځو د حقوقو په ډنډورو ماغزه را وخوړل او په همدغه شیطانی شعارونو یې د زرګونو افغاني خویندو پت او ناموس وتروړلو، اوس چې هم څوک د امریکا پۀ اهدافو نۀ پوهیږي او امریکا ته د دوست هېواد په نظر ګوري، هغه به له مرکب جاهل پرته بل څوک نه وي. د ګران هېواد د ازادۍ په هیله

# بزګر

## او د قبر لومړۍ شپه

بلال کاکړ

وايي چې يو پاچا و الله تعالی پريمانه نعمتونه ورباندې پيرزو کړي وو، به دنيا يې هيڅ ارمان نه درلود، د دنيا په محبت کې ګير غرق تللی و، د مرګ څخه يې ډيره زياته وېره درلوده، يوه ورځ يې خپلو بچيانو ته وصيت وکړ چې کله زه مړ شوم نو اوله شپه به مې نه خښوئ، بلکې زما په قبر کې به لومړۍ شپه بل ژوندی کس خښوئ، ترڅو چې زه د قبر له عذاب نه بچ شم او د خپلې باچاهۍ پوښتنې رانه ونشي، هر څوک چې زما لپاره قربانۍ ته تيار شو نو ښې پريمانه پيسې به ورکوئ او د ژوند تر پايه به يې هر اړخيز ضرورتونه پوره کوئ.

يو څه وخت وروسته پاچا وفات شو، زامنو يې د پلار وصيت پر ځای کولو په موخه د خپل پلار د مانۍ ټول خادمان او څوکيداران را ټول کړل، ترڅو چې د پاچا پر ځای يو کس د پاچا قبر کې خښ کړي، مګر هيڅوک ديته تيار نشول چې د ډيرو زياتو پيسو بدل کې يوازې يوه شپه د پاچا قبر کې تيره کړي.

د پاچا زامن په ټوله سيمه کې وګرځيدل بالآخره يو غريب بزګر يې پيداکړ چې نهه لورانې يې درلودې، ژوند يې ډير تنګ و، يوې مړې ډوډۍ پسې يې سترګې سپينې وې، يوازې يو خر، پړی او تبر يې درلودل، چې لرګي به يې وهل او د خلکو ځمکې به يې سمبالولې او د خپلو بچيانو سره به يې يوه مړې ډوډۍ باندې ګزاره کوله.

د پاچا زامنو ډير ټينګار ورباندې وکړ چې يوازې يوه شپه ده تيره به شي او ته به ټول عمر د تکليف نه بيغمه شې، آخر بزګر هم د ډير زيات مبلغ په مقابل کې ديته تيار شو چې يوه شپه د پاچا قبر کې تيره کړي.

بالآخره د پاچا قبر کې يې بزګر ژوندی خښ کړ، سهار وختي د پاچا زامن ورغلل او د بزګر پيسې يې هم ور وړې ترڅو چې بزګر له قبر نه را وباسي او پيسې ورکړي، مګر کله يې چې قبر لوڅ کړ، بزګر په ډيره ويريدلې بڼه له قبر څخه منډه کړه او وتښتيد، د پاچا زامن ورپسې ورغلل او بزګر يې را ګير کړ او پيسې يې ورته ونيوې.

بزګر انکار وکړ چې زه په هيڅ صورت دا پيسې نه اخلم، پاچا زامنو ورته وويل دا خو ستا حق دی او مونږ وعده درسره کړې وه.

بزګر ورته وويل زه ټوله شپه د يو خر، پړي او تبر د پوښتنو څخه تر سهاره پورې سترې شوم، له ما نه د خر په اړه ډيرې پوښتنې وشوې چې دا د له کومه کړی دی؟ په حلالو پيسو د اخيستی او که په حرامو؟ خر د چيرې څرولی دی؟ د پلانکي او پلانکي وابښه د ورباندې خوړلي دي؟ پړی د له کومه کړی دی؟ حرام لرګي د پکې راوړي دي که حلال؟ تبر د له کومه کړی؟ د بل چا لرګي د ولې پرې وهلي دي؟؟

نو زه په خپله غريبۍ باندې رازي يم، که زه تاسې نه دا دومره زيات مبلغ واخلم نو د دې ځواب به څنګه ورکوم؟؟؟

عبرت: هر انسان چې کله وفات شي نو قبر کې د مال په اړه پوښتنې ترې کيږي، د ذرې ذرې کتاب او حساب ورسره کيږي، هيڅوک بايد دا فکر ونکړي چې زه وفات شم هرڅه به راته وبښل شي او يا هم حيات برزخ نشته دی، نو هر مسلمان بايد خپل ټول ژوند د قرآن او سنتو په رڼا کې تېر کړي ترڅو چې دنيا او آخرت کې کامياب وي.



# امریکایي څواکونو په شپږو میاشتو کې
# تر ۱۶۰۰ زیات هوایي بریدونه کړي

افغانستان کې دېره امریکایي څواکونو په تېرو شپږو میاشتو کې د هېواد په بېلا بېلو برخو کې تر ۱۶۰۰ زیات هوایي بریدونه کړي، چې دا د تېر ټول کال دوه چنده بریدونه کېږي.

په ۲۰۱۶ کې په افغانستان کې تر اتو سوو لږ هوایي، او توغندیز بریدونه شوي وو، چې لویه برخه یې ډرون الوتکو کړي وو.

افغانستان کې د امریکایي څواکونو دفتر ویلي، د ۲۰۱۷ له جنورۍ تر جون میاشتې ټول ۱۶۳۴ بمي او توغندیز بریدونه شوي؛ خو د کشفي الوتنو په اړه یې څه نه دي ویلي.

امریکایي څواکونو په تېر جون کې هم ویلي و، چې یوازې د جون میاشتې هوایي بریدونه د تېر کال د شپږو میاشتو له هوایي بریدونو سره برابر دي.

د رسنیو د راپورونو په حواله د روان د شپږو میاشتو بریدونه له هغو بریدونه سره هم نږدې برابر دي، چې امریکایي څواکونو په ۲۰۱۲ کې په افغانستان کې کړي وو او هغه مهال په افغانستان کې تر اتیا زرو زیات امریکایان دېره وو.

له افغانستانه د بهرنیو څواکونو له وتلو سره سم د امریکا تگلاره دا وه چې دوی به بې پیلوټه بریدونه زیاتوي؛ خو اوس داسې ښکاري، چې نه یوازې د بې پیلوټه الوتکو بلکې د نورو جنگي الوتکو بریدونه هم زیات شوي.

د دغو بریدونو د زیاتوالي خبره هغه وخت هم توده شوه چې د ننگرهار په اچین کې امریکا د نړۍ تر ټولو ستر غیر اټومي بم وکاراوه.

د هوایي بریدونو له زیاتوالي سره جوخت په افغانستان کې ملکي مرگ ژوبله هم تر بل هر وخت لوړه شوې ده.

تازه د یوناما په راپور کې ویل شوي، چې د روان زیږدیز کال په لومړیو شپږو میاشتو کې تر پنځو زره زیاتو ملکي وگړو ته مرگ ژوبله اوښتې، چې لومړۍ درجه لامل یې طالبان او د هغوی سړک غاړې ماینونه او دویمه درجه لامل افغان او بهرنیو څواکونه او هغوی هوایي بریدونه ښودل شوي دي.

# پر غلامۍ جګړه

ف. فیاض

زموږ د هېواد وروستي سیاسي جریانونه، د حکومت دننه ائتلافونه او بیا یو بل ته ګواښونه، د بهرنیو لوریو برالا مداخلې له ورایه ښیي چې دهیواد سیاسي بهیر په اشغال سربیره له یوې مخې ابتذال ته لوېدلی دی.

یوازې ګډوډ حکومت نه دی چې د خپلواصولو او اساسي قانون له پټلې لوېدلی او لرې تللی، د انقرې د ائتلاف د مشرانو خبرې ښیي چې هر څه شرېدلي دي.

د امریکا سفارت د کابل حکومت په پلوی د ائتلاف پر ډلو فشارونه راوړي، د دې پر ځای چې نور سیاسي لوري په تېره د همدې نوي مخالف ائتلاف یاران پر دې اعتراض وکړي برعکس داسې ګواښونه کوي چې که نظام پلوه بهرنیان د دوی خبره وانه وري نو دوی به نورو لوریو ته لاس واچوي او هېڅ دربغه به ونه کړي. د بلخ ولایت په مسند ناست والي اوپه اصطلاح د حکومت د نوي مخالف ائتلاف غړی عطاء محمد نور ډېر پر صراحت همدغه خبره کوي.

د دې معنا دا ده چې جګړه یوازې د امتیاز پر سر نه ده، بلکې د غلامۍ پر سر هم ده.

افغان ولس تر اوسه پورې د خپل څو زره کلن تاریخ په بهیر کې دومره سپك سیاسي بهیر نه ؤ تجربه کړی. د ولس بدمرغي دا ده چې له تاریخ، هویت، ارزښتونو او ملي غرور او ویاړونو څخه یې د دفاع محور نشته، ظاهراً په هره کوڅه کې د یوه اتل بوت ولاړ دی، خو د اتل شعار بیا د یوه بادار د زنده باد او د ولس پر ارزښتونو د سوداګرۍ او معاملې تر بریده رالویدلی دی. ۳۹ کاله پخوا چې خلق او پرچم ډلو د کودتا له لارې د داوود خان حکومت رانسکور کړ، د ابتذال بهیر پیل شو، خو ولس خپل روایات وپالل، ولس خپل اصول هېر نه کړل، پردیو او پردیپالو ته یې سرونه ټیټ نه کړل.

د پخواني شوروي ستر یرغل د ولس په مېړانه او شهامت مات شو. تر هغو وروسته که کومه ډله او یا د سیاسي مشرتابه یو شمېر دعوه داران له پردیو سره تړلي وو، د ولس د غرور او هویت ساتونکي یې مخې ته راوتل.

له بده بخته د رنګارنګ تړاوونو دوام، د جګړو او بدمرغیو بهیر او د همدې بدمرغیو په دوام کې د ولس له منځه د کدرونو د له منځه وړو اوږد بهیر نن ولس په سپېره ډاګ اړولی دی.

نن مو د سیاسي او دحکومتي دعوه دارانو وضعه تر دې پورې رالوېدلې، ولس هېر شوی، پر پردیو تکیه او تړاو دومره زور موندلی چې د نظام دننه د سیاسي مخالفتونو او اتحادونو په جوړولو او ورانولو کې هم هغوی اوس برالا یو لوری دی. نه پوهېږو چې پر کوم ولس تر دې هم بد، ناوړه او سپك حالت راتلای شي او کوم ساري یې شته که نه؟! په دې کې چې څومره دغه په ابتذال کې لوېدلي د مشرۍ دعوه داران ښکېل دي، هومره ولس هم پړ دی، چې په هر چا پسې یې اقتدا کړې ده.

# د سوبې دروازه

شاعر : (عرفان الله عرفاني)

تورو ته مې سپر خپله سینه کړله
غېشو کې ستومانه مې لینده کړله

ځمکې ته لوېده خو ماپرې نه شوده
پورته مې د حق سپینه جنډه کړله

ما چې د تکبیر چیغه پرې وکړله
ویښه مې خوب وړې معرکه کړله

زه چې ملا تړلی تر ډګر راغلم
مسته مې مړ ژواندې حماسه کړله

زه چې د غزا په نیلي سپور شومه
وروسته مې غازیانو بدرګه کړله

بېرته مو بایللی جنګ ترې وګاټه
هسکه مې د ننګ، غیرت شمله کړله

ډېر مې پر تندي وارونه وخوړل
بیا مې هم تر سره مقابله کړله

اوس یې د کلا لوړ برج ته وختم
خلاصه مې د سوبې دروازه کړله

ما یې ( عرفاني ) آذانګې واورېدې
تا چې پیل د فتحې ترانه کړله



